**د کتاب پېژندنه :**

- د کتاب نوم :: کندهاري ورونه
- ليکوال :: محمدمعصوم هوتک
- د ليکلو پيل :: ۲۶ نومبر ۲۰۰۶ع
- بشپړېدل :: ۱۳ مۍ ۲۰۰۸ع
- د ليکلو ځای :: اوکويل – کاناډا
- خپرندوی :: علامه رشاد خپرندويه ټولنه / کندهار
- کمپوز او ډيزاين :: علامه رشاد کمپيوټر اداره / کندهار
- چاپ چاري :: صحاف نشراتي مؤسسه
- چاپکال :: ۱۳۸۷ ش – ۲۰۰۹ع
- چاپشمېر :: ۱۰۰۰ ټوکه
- د خپرونو لړ :: (۲۷)

**اړيکي**

m_rohyal2006@hotmail.com
mrohyal@gmail.com

**ګرځنده**

۰۰۹۳(۰) ۷۰۰۳۲۶۰۱۱

د خپرندوی یادښت :

# زموږ د تاریخ یوه پاڼه

تاریخ د عبرت لوست دئ، چي له بدو څخه یې باید پند واخیستل سي او ښې خواوي یې تعقیب سي، زموږ هېواد اوږد تاریخ لري، تاریخي پېښې یې هېښوونکي او ویښوونکي دي، زموږ ولس همېشه دغو هېښوونکو پېښو راویښ کړی دئ، ځکه یې نو د هېواد په تاریخ کي د بېلابېلو تاریخي دورو بابونه پرانیستلي دي.

له سدوزو څخه بارکزو ته د پاچهۍ انتقال زموږ د تاریخ ځانګړی څېرکی جوړوي، نو په اصطلاح دغه نوی څېرکی باید د خپل تاریخ یوه نوې دوره وبولو. د دغې دورې واکمنان ټول د سردار پاینده خان اولاده ده، سردار پاینده خان د بېلابېلو مېرمنو څخه یوویشت زامن درلودل، چي ټولو پخپل وخت کي د افغانستان پر بېلابېلو سیمو واکمني کړې، د دغو یوویشتو وروڼو څخه پنځه وروڼه د کندهاري سردارانو یا کندهاري وروڼو په نامه په تاریخ کي مشهور دي، دغه پنځه کندهاري سرداران د یوې مور زامن دي، چي د واکمنۍ دوره یې پر کندهار تېره سوې ده.

د کندهاري وروڼو واکمني د بارکزو د لویې پاچهۍ یو ځانګړی جغرافیایي موقعیت تر خپلې ولکې لاندي اداره کاوه، دا چي د دغې ستري پاچهۍ په باب بېلابېل کتابونه لیکل سوي، نو په ضمني توګه د کندهاري وروڼو د واکمنۍ تاریخي پېښې هم ورسره ذکر سوي دي، خو لکه څنګه چي دغه کورنۍ د افغانستان په تاریخ کي د ځانګړي اهمیت لرونکې ده او د کورنۍ ډېرو غړو یې د سیاسي او اداري ورتیا تر څنګ د هېواد د ادب او فرهنګ له پاره نه هېرېدونکي کارونه کړي په هغه ډول نه وه راپېژندل سوې،

دغه تشه زمونږ په عمومي تاریخ کي یو ځانګړی کمی و، چي د دغه کمي او تشي د ډکولو له پاره د هېواد تکړه مؤرخ او محقق لیکوال استاد محمد معصوم هوتک د (کندهاري ورونه) په نوم ستاسي په لاس کي مغتنم اثر لیکلی دئ، د کندهاري ورونو په باب د دغه ډول کتاب لیکل به زمونږ په عمومي تاریخ کي د یوې ځانګړي او مشهوري کورنۍ او پر افغانستان باندي د دغي کورنۍ د غړو د سیاسي تبارز تر څنګ د هغوی د بېلابېلو علمي او فرهنګي څېړو په راپېژندلو کي د یوه مؤثق مأخذ حیثیت ولري.

د دغه کتاب ځیني برخي په ښکلا مجله کي په پرله پسې ډول خپري سوي دي، خو د یوه کتاب په شکل یې علامه رشاد خپرندویه ټولنه د خپرېدو وياړ تر لاسه کوي، مونږ د ښاغلي استاد محمدمعصوم هوتک د دغه مغتنم اثر خپرېده یو ښه فال بولو، او د نورو لیکوالو او پوهانو څخه مو غوښتنه دا ده چي د هوتک صاحب غوندي د افغانستان په تاریخ کي پر دغه ډول سیاسي او ادبي کورنیو باندي کتابونه ولیکي، څو زمونږ د تاریخ بېلابېل ګوټونه د دوی د څېړونو په رڼا کي روښانه او د راتلونکي نسل له پاره د عبرت درس وګرځي.

په درنښت

علامه رشاد خپرندویه ټولنه

کندهار – افغانستان



د کتاب لیکوال، محمد معصوم هوتک
په شپېته کلنۍ کې

# فهرست

## د عکسونو فهرست

# د پیل خبري

د تاریخ هغه لوستونکي به ښايي د (کندهاري ورونو) یا (کندهاري سردارانو) له اصطلاح سره زیات مخامخ سوي وي، چي په نونسمه پېړۍ کي یې د افغانستان د حالاتو د مطالعې وخت موندلی وي. دا هغه وخت دئ چي پر افغانستان باندي د سدوزیو او بارکزیو د دوو متنفذو کورنیو ترمنځ خونړۍ جګړې روانې وې او په نتیجه کي یې د قدرت واګي له سدوزو څخه د بارکزو لاس ته ورغلې. د بارکزو دغه نوې واکمنه سوې کورنۍ د سردار پاینده خان له لسو ماندینو څخه د پاته سوو زامنو کورنۍ وه. د سردار پاینده خان د زامنو په دغه پراخه کورنۍ کي پنځه تنه له یوې موره وه. دا پنځه تنه، چي د (کندهاریو ورونو) یا (کندهاریو سردارانو) په نامه یادېدل، له پردل خان، شېردل خان، کهندل خان، مهردل خان او رحمدل خان څخه عبارت وه. زما دغه اوسنۍ څېړنه د همدې ورونو په باب ده. ما ته د (کندهاري ورونو) په باب د مطالعې په ترڅ کي څرګنده سوې ده، چي د دې کورنۍ زیات شمېر غړو، په تېره بیا د مهردل خان مشرقي او رحمدل خان اولادې د هیواد په سیاسي مقدراتو کي پر خپل رول سربېره، په ادبي او فرهنګي برخه کي هم د ستاینې وړ نقش لوبولی دئ او همدې نقش زه د دې کتاب کښلو ته وهڅولم. د دې کورنۍ په باب زموږ مشرانو مؤرخینو ښه پوره اندازه لیکني کړي دي. د بهرنیو لیکوالو او مؤرخینو په آثارو کي هم د دوی په باب یادوني سته او اوسنیو څېړونکو هم پاملرنه ورته کړې ده. زموږ په هیواد کي د وروستیو څولسیزو په بهیر کي، چي افغانانو د خپل تاریخ او فرهنګ په باب قلم چلولی دئ، د حجم په لحاظ یې په تېرو څو پېړیو کي ساری نه لیدل کېږي. خورا ډېر کتابونه پر خورا زیاتو موضوعګانو باندي په دواړو رسمي ژبو (پښتو او پارسي) لیکل سوي دي، چي دا د خوشالۍ خبره ده. خو پر څنګ یې له دې ترخه واقعیت څخه هم انکار نه سي کېدلای چي د دې لیکنو زیاتره برخه د جګړې د وخت د هیجاني او احساساتي قضاوتو تر اغېزې لاندي راغلې ده. موږ د هیواد په سیاسي تاریخ کي د شاملو اشخاصو په باب قضاوت د مطلق (ښه) او مطلق (بد) یا مطلق (تایید) او مطلق (تردید) له زاویې څخه کړی دئ. یو څوک چي مو تر سترګو بد ایسېدلی یا بل چا راته بد ایسولی دئ، د هغه پر ښو کارو مو هم سترګي پټي کړي دي. څوک چي مو بیا د خپل قضاوت په ترازو کي دروند موندلی

دئ، د هغه نیمګړتیاوي مو بیا هیري کړي او وربخښلي دي. د (کندهاري وروڼو) سیاسي رول چي هر راز و، ښه و، که بد، هغه د تاریخ په کتابو کي په تفصیل سره بیان سوی او ما یې هم پخپله همدې لیکنه کي یوه اندازه جاج اخیستی دئ. خو له دې واقعیت څخه هیڅوک انکار نه سي کولای چي په دې کورنۍ کي د سردار مهردل خان مشرقي غوندي عارف شاعر، د سردار غلام محمد خان طرزي غوندي کثیرالابعاد شخصیت او د پارسي ژبي د ویاړ وړ شاعر، د علامه محمود طرزي په شان پر افغانیت مین سیاستمدار، لیکوال، شاعر، ژورنالیست، ... تېر سوي دي چي د افغاني تاریخ او فرهنګ ویاړلي شخصیتونه دي.

ما هڅه کړې ده چي د دغي کورنۍ فرهنګي او سیاسي شخصیتونه خپلو وطنوالو ته د خپلي مطالعې په حدودو کي ور وپېژنم. دا کتاب یوه ضمیمه هم لري او هغه د شاغاسیانو کورنۍ ده. د دې کورنۍ سیاسي کردار هم د (کندهاري وروڼو) د عروج له زمانې څخه راشروع سوی دئ ځکه نو ما د کتاب یوه برخه ورته ځانګړې کړې ده. په دې برخه کي زما محترم دوست ښاغلي محمدیوسف شېردل د خپلو خانداني شجرو او روایتو په باب معلومات راسره شریک کړي دي چي د زړه له کومي کور وداني ورته وایم. دغه راز ښاغلي فرید میوندي هم د ډېري کوروداني مستحق دئ چي د خپلي کورنۍ تفصیلي شجرې یې را لېږلي دي.

زه فکرکوم چي په پښتو ژبه به دا لومړی کتاب وي، چي د دې دواړو کورنیو په باب پکښې تفصیلي بیان موندل کېدلای سي او هیله لرم چي زما دا لیکنه له ښاغلو لوستونکو سره د افغانستان د تاریخ پر هغه دوره باندي په پوهېدلو کي مرسته وکړي چي د ځینو اړخونو له مخي له ننۍ دورې سره ورته والی لري. له لوستونکو څخه هیله من یم چي د نیمګړتیاوو او تېروتنو په برخه کي مي پخپلو مشورو باندي وغټوي.

د دغه کتاب یوه برخه په ښکلا مجله کي چاپ سوې ده. زه د ښکلا مجلې چلوونکو ته د دغه اثر د خپرولو او د یو شمېر عکسونو د برابرولو له امله د زړه له کومي کور وداني وایم د بشپړ کتاب د چاپ او ایډیټ په کار کي د علامه رشاد خپرندویي ټولني او په سر سره ګران مطیع الله جان روهیال ډېري خواري کښلي دي. زه یې د احسان ممنون یم. د زلمیو په زړونو کي دي د کتاب لوستلو او خپرولو مینه همېشه وي.

**محمدمعصوم هوتک**

**اوکویل۔ کاناډا**

**۱۳ می ۲۰۰۸ع**

# حاجي جمال خان

د تاريخي سيمي د هلمند د پای کي په پېړۍ هجري پېړۍ د يوولسمي نادعلي په کلي کي د بارکزيو د قبيلې يو دروند مشر د خپل قام مشرتوب پر غاړه درلود، چي حاجي جمال خان نومېدی او په اولس کي وروسته په حاجي جمال نيکه مشهور سو. د حاجي جمال نيکه د مشرتوب زمانه د کندهار په ښار کي د ملي قايد حاجي ميرويس نيکه په لاس د يوه ملي حکومت د تاسيس له نېټې سره برابره ده[1].

د حاجي جمال خان پلار حاجي يوسف (توپچي باشي) نومېدی او د هغه محمد نيکه له اولادې ځخه و، چي د محمدزو د قبيلې مورث أعلی بلل سوی دئ. د دغه محمد نيکه قبر د کندهار په ارغسان کي دئ[2]. د حاجي جمال خان د زېږېدو کال مؤرخينو ۱۰۹۸هـ ق = ۱۶۸۶ع ګڼلی دئ او مړينه يې د ستر ټولواک لوی احمدشاه بابا (۱۱۶۰ – ۱۱۸۶هـ ق) تر وفات دوه کاله وړاندي يعني په ۱۱۸۴هـ ق = ۱۷۷۰ع کال کي پېښه ده. د مړيني پر وخت يې عمر په قمري حساب ۸۶ کاله و، چي په ميلادي محاسبه کي ۸۴ کاله

---

(۱) حبيبي، شل مقالې، ۵۳/۴ مخ.

(۲) په تواريخ خورشيد جهان ۱۸۳مخ، چاپ ۱۸۹۴ ع کي يې حاجي جمال خان د حاجي يوسف زوی د يارو لمسی او يارو يې محمدزی، نورالدين زی بارکزی بللی دئ. ښاغلي کاکاخېل په پښتانه د تاريخ په رڼا کښې هم د خورشيد جهان شجره نقل کړېده. ښاغلي عزيزالدين وکيلي پوپلزي په درة الزمان ۲۴۲ مخ کي بېله دې چي ماخذ وښيي حاجي جمال خان د يوسف خان زوی د سرور خان لمسی د يعقوب خان کړوسی د اختيار خان کوسی او د محمد نيکه کودی بللی دئ. په اماني عصر کي د ايران سفير او مؤرخ سيد مهدي فرخ په تاريخ سياسي افغانستان، ص ۲۱۵ چاپ ۱۳۷۱ش کي حاجي جمال خان ابن حاجي محمد يوسف خان ابن محمد سرور خان ابن محمد يعقوب خان ابن اختيار خان ابن محمد بللی دئ، چي دا شجره او د ښاغلي عزيزالدين خان وکيلي په قلم ليکلې سوې شجره يو شان ده.

کېږي. د حاجي جمال خان نیکه قبر د کندهار د احمدشاهي ښار جنوب ته د ذاکر د کلي په جنوب لوېديځ کي د یوه کوچني غرګي په لمن کي واقع دئ.

حاجي جمال خان له هغو څورلسو تنو ابدالي مشرانو څخه و، چي افشار نادر ورته د مشرتوب په سترګه کتلي وه. کله چي د شیر سرخ په جرګه کي د نوي افغانستان د زعامت پر سر باندي خبري کېدلې، حاجي جمال خان نیکه لومړی شخص و، چي د احمد خان (وروسته احمدشاه بابا) زعامت يې ومانه او د بیعت لاس يې ورکړ. د ده په پیروۍ د جرګې نورو برخه والو هم ځوان احمد خان د خپل مشر په توګه ومانه.

حاجي جمال خان نیکه دوې ښځي کړي وې. یوه يې بار کزۍ او بله يې غلجۍ وه. له دې دوو ښځو څخه يې څلور زامن او یوه لور پاته سول[۳]. زامن يې هارون خان، پاینده خان، رحیمداد خان او بهادر خان نومېدل. په دوی کي رحیمداد خان ته د پلار تر مړيني وروسته د قوم مشري ورسېده خو د دې ستر کار له پاره يې وړتیا نه درلوده ځکه نو د قوم د مشرتوب بګړۍ د ده بل سکه ورور پاینده خان ته ورسېدله. بهادر خان فقیرمشربه سړی و له دنیایي چاروسره يې جوړه نه وه. د هارون خان او پاینده خان په باب به په وروستیو پاڼو کي وږغېږو.

حاجي جمال خان یو ورور درلود، چي زبیر خان نومېدی.

---

(۳) وګ : www.۴dw.net/royalark/Afghanistan/barak/.com د انټرنېټ په دغه پاڼه کي د حاجي جمال خان نیکه د مړيني کال ۱۷۷۲ع ښوول سوی دئ چي د تامل وړ دئ.

# د حاجي جمال خان شجره




* په ځينو ماخذو کي د حاجي جمال خان په زامنو کي د هارون خان پر ځای (عبدالحبيب خان سخي) راغلی دئ.

** د سردار پاینده خان د اولادو شجرې به پر خپل ځای ولولئ.

*** د سردار پاینده خان سکه خور او په سدوزي تېمورشاه واده وه.

**** یوه ښځه یې کشمیرۍ (بي بي کرمۍ) او بله یې د امیر دوست محمد خان کونډه وه.

# سردار پاینده خان

**د حاجي جمال خان نیکه څلور زامن پاته سول : هارون خان او بهادر خان مشهور په حاجي درویش له یوې مور (بارکزۍ) او سردار رحیمداد خان او سردار پاینده خان له بلې مور (غلجۍ) څخه ول[1].**

**سردار پاینده خان د پلار د مرګ پر وخت په یوه روایت د اتو کالو او په بل روایت د دوولسو کالو و او د خپل مشر سکه ورور تر سرپرستۍ لاندي لوی سو. شپاړس کلن و، چي د تیمورشاه له خوا د سردارۍ په خطاب وغتول سو او وروسته یې د خپلو خدمتونو په چوټ له نامه سره د سر فراز خان لقب هم زیات سو.**

**سردار پاینده خان په هغه ډله کي شامل و، چي د شاه زمان سدوزي د رانسکورولو په نیامت جوړه سوې وه. د دې ډلي د جوړېدو او د هغې د وروستي سرنوشت تفصیلي بیان د تاریخ په کتابو کي داسي راغلی دئ. شاه زمان سدوزي تخت ته له رسېدو سره سم په سلطنتي لوړ رتبه کسانو کي ځیني مهم بدلونونه راوستل او د هغو په لړ کي یې کامران خېل سدوزی رحمت الله خان د معتمدالدوله او وفادار خان په لقب وغتاوه او په دربار کي یې د ډېر قدرت څښتن کړ، چي په پای کي د خپل فطري استعداد له امله د (وزارت او کل مختاریت) رتبې ته ورسېد.**

**رحمت الله خان د دربار له اراکینو سره د هغوی له شان سره برابره وضعه نه کوله، تر دې اندازې چي سردار پاینده خان ته لا هم په سپکه کتل**

---

[1] علامه حبیبي، شل مقالې، ۴ برخه ۵۲ مخ. په سراج التواریخ ۲/۲ مخ او درة الزمان ۲۴۰ مخ کي د حاجي جمال خان زامن په دې ډول ښوول سوي دي: سردار پاینده خان، عبدالحبیب خان، حاجي درویش خان او سردار رحیمداد خان. تواریخ خورشید جهان ۱۸۲ مخ، پښتانه د تاریخ په رڼا کښې ۱۲۷۴ مخ او موهن لال ۶۰ مخ کي د علامه حبیبي د روایت ملاتړ سته او سردار پاینده خان، سردار رحیمداد خان، هارون خان او بهادر خان یې د حاجي جمال خان په زامنو کي راوړي دي. ما (هوتک) وروستی روایت را نقل کړی دئ.

کېدله. دې حالت د دربار نور مخور په اندېښنه کي واچول او د يوې چارې په لټه کي سول. تر غور او فکر وروسته يې يوه غونډه راوبلله چي په هغې کي سردار پاينده خان (سرفرازخان)، اسلام خان ضبط بيگي، حکمت خان سرکاني، د مير هزارخان الکوزي زوی محمدعظيم خان، امير اصلان خان، جوانشير جعفرعلي خان، خواجه سراء يوسف علي خان، منشي ميرزا شريف خان، نور محمدخان بابړ او نورو برخه اخيستې وه. دا غونډه د هندوستاني ميا غلام محمد په خانقاه کي جوړه سوې وه. د غونډې برخه والو پر قرآن باندي لاسونه کېښېښوول او وې لوړل چي رحمت الله خان به وژني او شاه زمان به له تخته ليري کوي او پر ځای به يې شهزاده شجاع الملک پاچا کوي.

وايي چي دې غونډې د خپلو عملياتو له پاره هغه ورځ ټاکلې وه، چي په هغې کي رحمت الله خان د کندهار ښار د تورو غرو ته[۲] د ښکار په نيت وتی. د رحمت الله خان د وژلو وظيفه محمد عظيم خان الکوزي ته ورکړه سوې وه.

د دې غونډې يوه برخه وال ميرزا شريف خان منشي له خپلو ملگرو سره خيانت وکړ او د غونډې ټول حال يې رحمت الله خان سدوزي ته ورساوه. رحمت الله خان د ښکار نيت فسخ کړ او په هماغه ورځ يې شاه زمان هم د توطيې په جريان ټکي په ټکي خبر کړ. شاه زمان د غونډې برخه وال د کټني په پلمه دربار ته ور وغوښتل او د ټولو سرونه يې ورپرې کړل.

دې پېښي که سمدلاسه د رحمت الله خان او شاه زمان سر او پاچهي ته نجات ورکړ، خو په حقيقت کي يې د سدوزو پاچهي خورا ډېره تکاني کړه او په پای کي يې د احمدشاه بابا په لاس جوړه سوې واکمني د بارکزو قبيلې ته ورانتقال کړه[۳]. د شاه زمان د پاچهي د وخت دا ستره پېښه په ۱۲۱۴ هـ ق کال (۱۷۹۹ع) کي واقع سوه.

سردار پاينده خان، چي د همدې ډلي له نورو غړو سره يو ځای د شاه زمان په حکم ووژل سو، د مرگ پر وخت اته دېرش کلن و. د ده مړی يې په ذاکر شريف کي د حاجي جمال خان نيکه په هديره کي ښخ کړی دئ او د قبر

---

[۲] دا غرونه د کندهار د احمدشاهي ښار شمال ته پراته دي. د غرو دا لړی د بابا صاحب له کوتل څخه شروع او مخ پر ختيځ غځېدلې ده.
[۳] وگ: تاريخ سلطاني – ۱۶۸ مخ، سراج التواريخ ۸۳/۱ مخ.

د شنختي يو دوه بيته يې، چي په هغه کي د ده د وژلو تاريخي ماده هم سته، د تاريخ سلطاني مولف رانقل کړي دي او سراج التواريخ هم اخيستي دي:

زبافتاد چو بـــــر خاک سرفراز جهان
بلــند ناله وافــغان شــد از هــمه افغان
زعقل سال وفاتش چـــــو باز پرسيدم
جواب داد که قل هم شهادت الرحمن[۴]

زموږ د عصر مؤرخ عزيزالدين وکيلي پوپلزايي د دغي پيښي کال له دې امله ۱۲۱۳هـ ق بللی دئ، چي په همدې کال رحمت الله خان د وزارت مقام ته ټاکل سوی و. ښاغلي وکيلي د رحمت الله خان د ټاکل کېدو کال له هغه مهر څخه معلوم کړی دئ، چي له ده سره يې کاپي خوندي ده[۵]. دغه راز يې د همدې کتاب په ۲۴۲ مخ کي د سردار پاينده خان د مړيني قطعه د نوموړي سردار د يوه معاصر شاعر له خولې ؟ راوړې ده او په هغه کي د مرګ کال (شهيد اکبر و پاينده سرفراز آمد) بللی دئ، چي ابجدي ارزښت يې ۱۲۱۳ کېږي. د شاعر نوم په دې روايت کي ښوول سوی نه دئ او د شعر سکښت او مضمون ما ته نوی ښکاري (والله اعلم بالصواب). علامه حبيبي مرحوم دغه پيښه د ۱۲۱۳هـ ق کال = ۱۷۹۸ع په لړ کي راوړې ده[۶]. علامه رشاد رحمه الله د کندهار په يادانښتو کي د دغي پيښي کال دَ ۱۲۱۳هـ ق کال اواخر بللي دي او په حاشيه کي ورته کښلي دي، چي: "د پاينده خان د وژلو نېټه زموږ په آثارو کي تفاوتونه لري". بل ځای يې دغه کال ۱۲۱۳ يا ۱۲۱۴هـ ق بللی دئ. ما چي د علامه مرحوم د کندهار يادانښتونه ترتيبول، د ۱۲۱۳هـ

---

[۴] تاريخي ماده (قل هم شهادت الرحمن) ده چي ابجدي ارزښت يې ۱۲۱۴ کېږي. بايد ووايم چي دغه دوه بيتونه په تاريخ سلطاني کي سم ثبت سوي نه دي او د (الرحمن) کلمات يې د (الرحمان) په شکل کښلي دي، چي په دې توګه د تاريخي مادې ابجدي ارزښت ۱۲۱۵ کوي او دا کال د سردار پاينده خان د مړيني کال نه دئ. ما پورتني دوه بيتونه له سراج التواريخ (د ۱۳۷۲ ش کال چاپ) څخه رانقل کړل. په دې چاپ کي يې په حاشيه کي نوموړي باريکی ته اشاره کړې ده خو دلته يې بيا د ۱۲۱۵ پر ځای ۱۳۱۵ کښلي دي، چي چاپي تېروتنه يې بولم.

[۵] وګ: درة الزمان – ۱۳۳مخ.

[۶] حبيبي، عبدالحی (پوهاند)، د افغانستان پېښليک ۱/۱۷۲مخ، ۱۳۵۳ش.

ق کال پر ځای مي ۱۳۱۳ سهواً راتقل کړی دئ چي باید سم سي.

سردار پاینده خان لس ودونه کړي وه. لومړی ښځه یې محمدزۍ (نصرت خېله)، دوهمه یې بارکزۍ (ملک دین زۍ)، دریمه یې کوهستانۍ، څلرمه یې نصرت خېله، پنځمه یې هوتکه (ایدوخېله)، شپږمه یې الکوزۍ، اوومه یې زینت بېگمه (د موسی خان جوانشیر قزلباش لور)، اتمه یې تاجکه، نهمه یې سیاه پوشه نورستانۍ او لسمه یې هزاره وه. موهن لال لیکي چي د وزیر فتح خان، تیمور قلیخان او محمدعظیم خان مور نصرت خېله وه. د نواب اسدخان، نواب صمد خان او نواب طره باز خان مور بارکزۍ وه. د عطامحمد خان، یارمحمد خان، سلطان محمد خان او پیرمحمد خان مور الکوزۍ وه. د پردل خان، شیردل خان، کهندل خان، مهردل خان او رحمدل خان مور ایدوخېله هوتکه وه. د دوست محمد خان او امیرمحمدخان مور د سیاه منصور له خاندانه وه او پارسۍ وه. وایي دغه پارسۍ قزلباشه د سردار پاینده خان گرانه ماینه وه[۷] او له هغو څخه یې یوویشت یا په بل روایت پنځه ویشت زامن او څلور لوڼي پاته سول چي د افغانستان په تاریخ کي یې د یادوني وړ مثبت او منفي رولونه ولوبول. د ده په زامنو کي د وزیر فتح خان او امیر دوست محمد خان نقش تر نورو ورونو زیات و. امیر دوست محمد خان د ټول افغانستان پر واکمنۍ باندي بریالی سو او د معاصر افغانستان په تاریخ کي د (امیرکبیر) په نامه یاد سوی دئ.

د ټولو زامنو نومونه یې دا دي:

- وزیر فتح خان (۱۱۹۲- ۱۲۳۴هـ ق) د غزني په علي لالا زیارت کي ښخ.
- نواب اسد خان (تولد ۱۱۹۲ هـ ق).
- تیمور قلیخان (۱۱۹۵- ۱۲۳۸هـ ق)، د لغمان د مهترلام بابا په زیارت کي ښخ.
- نواب عبدالجبار خان (۱۱۹۷- ۱۲۷۰هـ ق) د کابل په عاشقان و عارفان کي ښخ.
- سردار محمدعظیم خان (۱۲۰۰- ۱۲۳۸هـ ق) د کابل په عاشقان و عارفان کي ښخ.

---

[۷] وگ: موهن‌لال، زندگی امیر دوست‌محمد خان، د دوکتور هاشمیان ترجمه، ۷۰-۷۳ مخونه.

- سردار پردل خان (۱۲۰۰– ۱۲۴۵هـ ق) د کندهار په حضرتجي بابا زيارت کي ښخ.
- نواب عبدالصمد خان (۱۲۰۰ – ۱۲۴۴هـ ق) په کندمک، کي ښخ.
- سردار عطامحمد خان (۱۲۰۰ – ۱۲۳۹هـ ق) د پېښور د شيخ حبيب صاحب په زيارت کي ښخ.
- سردار شيردل خان (۱۲۰۱– ۱۲۴۲هـ ق) د کندهار د حضرتجي بابا په زيارت کي ښخ.
- سردار يارمحمد خان (۱۲۰۵ – ۱۲۴۴هـ ق) د پېښور د شيخ حبيب صاحب په زيارت کي ښخ.
- امير دوست محمدخان (۱۲۰۷ – ۱۲۷۹هـ ق) د هرات د خواجه عبدالله انصاري صاحب په زيارت کي ښخ.
- سردار کهندل خان (۱۲۰۸ – ۱۲۷۱هـ ق) د کندهار د حضرتجي بابا په زيارت کي ښخ.
- سردار امير محمدخان (۱۲۰۹ – ۱۲۵۰هـ ق) د کابل په عاشقان و عارفان کي ښخ.
- سردار طره باز خان (تولد۱۲۱۰هـ ق) د لغمان د مهترلام بابا په زيارت کي ښخ.
- سردار سلطان محمد خان (۱۲۱۰ – ۱۲۷۸هـ ق) د کابل په مرنجان غونډۍ کي ښخ.
- سردار رحمدل خان (۱۲۱۱ – ۱۲۷۵هـ ق) د نجف په وادی السلام کي ښخ[۸].
- سردار سعيدمحمد خان (۱۲۱۲ – ۱۲۷۷هـ ق) د کندهار په حضرتجي بابا زيارت کي ښخ.
- سردار مهردل خان (۱۲۱۲ – ۱۲۷۱هـ ق) د کندهار په حضرتجي بابا زيارت کي ښخ.
- سردار جمعه خان (۱۲۱۲ – ۱۲۸۸هـ ق) د کندهار په ميوند کي د

---

[۸] په ځينو مأخذو کي د سردار رحمدل خان د مړيني کال د ۱۲۷۸هـ ق کال د شوال مياشت ده (وګ: د همدي اثر ٦٩ مخ).

خواجه حسن ميوندي زيارت ته نژدې ښخ.

- سردار پیرمحمد خان (۱۲۱۴ – ۱۲۸۸هـ ق) د کابل په ملا فېروز کلا کې ښخ[۹].

په ځينو ماخذو کې پر پورتنيو زامنو سربېره دانومونه هم زيات سوي دي:

- سردار محمدزمان خان
- سردار محمدزمرخان؟
- سردار حيدرخان
- سردار اسلم خان (په کوچنيوالي کې مړ سو)
- سردار خيرالله خان

لوڼي يې:

- وفابيګم، په سدوزي شاه شجاع واده وه.
- بله لور يې د سردار رحيمداد خان زوی عبدالامين خان (توپچي باشي) ته ناسته وه.
- دريمه لور يې د عبدالرسول خان نومي مېرمن وه.
- او څلرمه لور يې د سدوخان نومي مېرمن وه[۱۰].

مير غلام محمد غبار ليکي، چې د سردار پاينده خان د يوويشتو زامنو زوزات په يوه نيمه پېړۍ کې نژدې اوو زرو تنو ته ورسېدل[۱۱].

د پاينده خان تر وژل کېدو وروسته يې زوی فتح خان د خپلو اکا زامنو عبدالسلام خان، عبدالواحد خان، محمدرحيم خان امين الملک او دوو تنو نورو ملګرو سره له کندهاره ګرشک ته وتښتېد. د سردار پاينده خان د کورنۍ کوم غړي چې په کندهار کې پاته سول، په دونه خوارۍ کې يې ژوند کاوه، چې وايي د احمدشاه بابا د زيارت پر شاوخوا به يې ګدايي کوله[۱۲].

---

[۹] سراج التواريخ.

[۱۰] وايي دې ښځې خپل مېړه د کابل په شوربازار کې وواژه.

[۱۱] وګ: افغانستان در مسير تاريخ- ۵۰۹مخ.

[۱۲] وګ: موهن لال – پارسي ترجمه، ۷۲ مخ.

# سردار هارون خان

سردار هارون خان د حاجي جمال خان زوی او د کندهاري سردارانو اکا (تره) و، چي د ۱۱۵۰ هـ ق (۱۷۳۷ع) په شاوخوا کي زېږېدلی او ژوند يې تر ۱۲۰۰هـ ق (۱۷۸٦ع) پوري يقيني دئ. کله چي د حاجي جمال خان نيکه تر مړيني وروسته د بارکزيو مشرتوب سردار پاينده خان ته ورسېد، سردار هارون خان يې د گرشک د حکمران په توگه وټاکه. د سردار هارون خان زياتره ژوند په گرشک کي په حکمرانۍ تېرسوی دئ، خو په کابل، کشمير، سنده او هرات کي يې هم وخت تېر کړی دئ. د حاجي جمال خان په کورنۍ کي لومړنی شاعر همدا هارون خان دئ. ده د فارسي شعر يو بشپړ ديوان پرې ايښی دئ، چي وايي ۴۵۰۰ بيته دئ. په شعر کې د حافظ، سعدي، صائب، جامي او نورو استادانو پيروي کړې ده.

دلته به يې د کلام د نمونې په توگه هغه غزله راوړو، چي زما په گومان د شيرازي حافظ د

اگر آن ترک شـــيرازی بکف آرد دل ما را
بخال هندويش بخشم سمرقند و بخارا را

اغېزه پرې پرته ده :

چو آرم در خيال خــــود شب آن لبهای ميگون را
بجــای باده نـــوشم تاسحرگه ساغـــر خون را

شـــود خورشيد تا از شـــرم در ابر سيه پنهان
مه من ! دور کن از چـــهره يکره زلف شبگون را
روی ای ســــرو قامت تا بسير بوستان روزی
بخاک تيره بنشانی زشـــوخی سرو مـوزون را
شبی گـــر بگذرد در دل، خـيال بـرق رخسارت
چراغــــــان از شرار آه سازم سقف گـردون را

بروز عید قـــربان میکنم قـــربان ترا گـفتی
"سرت گردم" مده از دست خویش این روز میمون را
زاحـــــوال رقیبان یک بیک از ناز پرسـیدی
نمی پرسی چـــرا؟ ای سنگدل احوال "هـارون" را

د سردار هارون خان دوه زامن پاته سوي دي، چي سرورخان او امردین خان نومېدل[۱].

---

[۱] د سردار هارون خان په باب علامه حبیبي یوه مبسوطه مقاله کښلې ده، چي زما معلومات د همدې لیکني لنډیز دئ. وګ: شل مقالې ۴ برخه ۵۴ – ٦۰ مخونه.

# کندهاري سرداران

د سردار پاینده خان په زامنو کي پنځه ورونه پردل خان، شېردل خان، کهندل خان، مهردل خان او رحمدل خان له یوې موره وه او په تاریخ کي د (کندهاري ورونو) یا (کندهاري سردارانو) په نامه یاد سوي دي. د دوی په باب ویل سوي دي:

ما پنج برداران که از یک پشتیم
در دست زمانه همچو پنج انگشتیم
چون فرد شویم در نظرها علمیم
چون جمع شویم بر دهانها مشتیم[1]

لکه په تېر بحث کي چي مو ولوستل د کندهاریو ورونو مور ایدوخېله هوتکه وه[2]، د هغې ورور خداینظر خان د کندهاري سردارانو په وخت کي د یوه متنفذ مشر په توګه پېژندل سوی و[3]. اروانښاد کهزاد یې د سردار شېردل خان د (معاون) په توګه نوم اخلي[4].

فیض محمد کاتب هزاره په سراج التواریخ ۱/ ۱۴۸مخ کي خداینظر خان په قوم سهاک بللی دئ. د دې تېروتني د توضیح له پاره زه مجبور یم، لږ څه مخکیني پېښې بیان کړم.

کله چي د سردار محمدعظیم خان تر مړیني وروسته (۱۲۳۸هـ ق = ۱۸۲۳ع) د سردار پاینده خان د زامنو د خپل دغه متوفي ورور د پاته سوي ثروت پر سر د هغه وخت د افغانستان له هر کونج څخه مخ و کابل ته ونیو او په کابل کي یې د سردار محمدعظیم خان بدبخت زوی سردار حبیب الله

---

[1] دا رباعي وار دواره د سراج الاخبار د لومړي کال په یوه ګڼه کي چاپ سوې ده.
[2] وګ: موهن لال – پارسي ترجمه، ۷۱مخ، حبیبي – جنبش مشروطیت، ۱۰۸مخ، ۱۳۷۷ش.
[3] وګ: سل بګړي یو پوړني، د لیکونکي اثر، ۲۱۴مخ.
[4] کهزاد، احمد علی – بلاحصار کابل و پیش آمدهای تاریخی، ص ۴۱۸، چاپ ۱۳۸۳ش.

خان ته د سر په کاسه کي اوبه ورکړې او په پای کي يې د خپل پلار له ثروت څخه يو سر دوه غوړه نامېنده وايست، نو د سردار پاينده خان زامنو پخپل منځ کي يو وار بيا جوړه وکړه او د دې جوړې په ترڅ کي يې پر پخواني تړون باندي نوې کتنه وکړه، چي په هغو کي يې د (خورد کابل) او (بيک سمند[۵]) سيمي د کندهاري سردارانو ماما خداينظر خان ته په جاګير کي ورکړلې. خداينظرخان په دغو سيمو کي کلاوي جوړې کړې او خپله خور (د کندهاري سردارانو مور) او د کورنۍ نور غړي يې ورولېږدول. دی به پخپله کله کله د جايداد د سرپرستۍ له پاره له کندهار څخه ورتلی خو زيات وخت به يې له خپلو خوريانو سره په کندهار کي تېراوه. په خورد کابل کي د خداينظر خان د کلاوو او کورونو سته والي د سراج التواريخ مؤلف ته د خداينظر خان د سهاک توب نظريه ورکړې ده، چي يوه تېروتنه ده.

خداينظرخان ماما په هغو جګړو کي چي کندهاري سردارانو د سدوزي شاه شجاع د لښکر په وړاندي د کندهار په ښار کي وکړې، له خپلي قطعې سره، چي دوه توپه هم پکښې وه، د کندهار ښار په لوېديځ کي د (کوه نګار) په غره کي مورچل نيولی و[۶].

د نګار غر د کندهار د ډنډ د اوسني چوک په شمال لوېديځ کي پروت دئ او د کندهار ښار د چينلو د اوبو زېرمه د دغه غره پر سر ودانه سوې ده.

---

[۵] د کابل له ښار څخه د جلال آباد پر لور چي څوک د تره خېلو سيمي ته ورسېږي، يوه فرعي لار مخ پر جنوب څنې جلا کېږي. پر دغه لار چي تر حسين خېلو څوک تېر سي، د خورد کابل سيمه مخي ته راځي. دا سيمه له کابل ښار څخه تقريباً پنځلس ميله واټن لري. تر خورد کابل وروسته د لوګر تېک شروع کېږي.

د مغولو په لښکرکښيو (شپاړسمه پېړۍ) کي له کابله څخه جلال آباد ته د تلوراتلو لار له همدې خورد کابل څخه تېرېدله تر بتخاک او جګدلک وروسته جلال آباد ته رسېدله. د افغان – انګليس د لومړۍ جګړې (۱۸۳۸ – ۱۸۴۲ع) پر مهال انګرېزانو له همدې لارې څخه کار اخيست. خو د افغان – انګليس د دوهمي جګړې پر وخت (۱۸۷۸ – ۱۸۸۰ع) جنرال رابرټس د (لته بند) کوتل لار غوره کړه. دا لار د خورد کابل په شمال کي تېره سوې لږ لنده ده. د (بيک سمند) سيمي موقعيت نه را معلومېږي (هوتک).

[۶] سراج الاخبار، ۱۷۱/۱ مخ.

## پر کندهار باندي

# د کندهاري ورونو دواکمنۍ پیل

د سدوزي شاه زمان په امر د بارکزیو د مشر سردار پاینده خان (وفادار خان) وژني (۱۲۱۳ یا ۱۲۱۴هـ ق) د بارکزیو سیاسي فعالیتونه سره منسجم او پیاوړي کړل او وزیر فتح خان ته یې د افغانستان په سیاسي مقدراتو کي د لاس درلودلو پراخه زمینه برابره کړه. د ده د تدبیر او زړه ورتیا له برکته شاه محمود سدوزی د پاچهۍ تخت ته ورسېدی (۱۲۱۵هـ ق = ۱۸۰۰ع)[1]. خو د شاه محمود سدوزي د زوی شاهزاده کامران په لاس په هرات کي د نوموړي مدبر وزیر ړندېدلو (۱۲۳۳هـ ق=۱۸۱۷ع) د وزیر فتح خان شل ورونه دونه وخښمول چي خپلي قبیلې ته یې د پاچهۍ له لېږدولو پرته په بل هیڅ راز جبران غاړه نه ایستله.

کله چي شاه محمود سدوزی له خپل زوی کامران سره یو ځای د کابل له واکمنۍ څخه د سردار دوست محمدخان د لیري کولو په نیامت له کندهاره د دېرش زره کسیز لښکر په ملګرتیا مخ پر کابل وخوځېد (۱۲۳۴ ق) په سترګو ړوند سوی وزیر فتح خان یې هم له ځان سره بوت او غزني ته نزدې یې د نورو درانیو سردارانو په ملتیا په خورا بېرحمۍ سره وواژه او په دې ډول یې د خپل تخت لړزاندي پایې نوري هم ولړزولې. په دغه وخت کي د سردار دوست محمدخان لښکر هم له شاه محمود سره د مقابلې په نیت له کابله راووت او په کلای قاضي

---

[1] دا نېټه ما له (تاریخ مختصر افغانستان – چاپ ۱۳٦۸ ش، ص ۲۷۵) څخه اخیستې ده، خو د افغانستان پېښلیک نومي کتاب کي بیا د شاه محمود لومړی وار پاچهي د ۱۲۱٦هـ ق=۱۸۰۱ع کال په پېښو کي راغلې ده.

کې د مقابلې او جنګي خدعې په مرسته[۲] شاه محمود سدوزی او زوی یې د جګړې له میدانه وتلو ته مجبور کړل او هغوی د فراه له لارې ایران ته وتښتېدل.

شاه محمود سدوزی او زوی یې شهزاده کامران چې له کندهاره د کابل پر لور خوځېدل، د کندهار حکومت یې نائب ګل محمدخان پوپلزي ته وسپاره[۳]. له کندهار څخه د شاه محمود د وتلو خبر چې سردار شېردل خان، سردار کهندل خان او سردار پردل خان ته ورسېد، په تلوار یې د خپل قوم له لښکرو سره پر کندهار ښار برید وکړ. نائب ګل محمد خان ځان په ښار کې کلابند کړ. څرنګه چې یې په ځان کې د مقاومت بیچ نه لیدی، ځکه یې سردارانو ته خبر ورکړ، چې په کابل کې د جګړې د سرنوشت تر معلومېدو پورې له وینو تویولو څخه ډډه وکړي. که د کابل په جګړه کې شاه محمود مغلوب سو، دی به هم کندهار بې ډز و ډوزه ورتسلیم کړي او که شاه غلبه ومونده، سرداران یې بېله هغه د مقابلې توان نه لري.

سردار شېردل خان او وروڼو یې په ښکاره دا وړاندیز ومانه او نائب ګل محمدخان یې په خپل وړاندیز باندې مصروف وساته، غافل یې کړ او په پټه یې د ښار کلا ته د ورختلو له پاره د زینو ایښوولو انتظامات برابر کړل. څو شپې وروسته یې د ښار د کلا ټولو برجانو ته خپلې لښکري ور ورسولې او کلا ته یې زینې کېښېښوولې. لومړنی سړی چې د نورزو په شاه برج کې پر

---

[۲] دا جنګي خدعه داسې وه چې دوست محمدخان د عطامحمد له خوا، چې په دغه وخت کې له ده سره بندي او په سترګو ړوند سوی و، شهزاده کامران ته یو جعلي لیک وکیښ او په هغه کې یې د نوموړي عطامحمد خان له خولې شهزاده ته خبر ورکړ، چې د لښکر ټولو سردارانو یې له دوست محمد خان سره په پټه تار اچولی دئ او غواړي چې نن شپه شهزاده او پلار یې شاه محمود سدوزی مړه کاندي. شهزاده او پلار ته چې یې دا لیک ورسېد، په هغه ګړۍ د جګړې له میدانه وتښتېدل.

[۳] نائب ګل محمد خان د اسلام خان زوی د محراب خان لمسی او د سهراب خان کړوسی و (وګ: احمد شاهي کندهار، د لیکونکي اثر، ۲۴/۱ مخ).

زينه باندي کلا ته ورواووښت، د ملا بازار بارکزي زوی ميرداد خان و[۴]. ده د ښار دروازه خپلو ملګرو ته خلاصه کړه، ښار ته د سردارانو لښکر ورننوت او پر ښار يې قبضه ولګوله. نائب ګل محمد خان له ښاره وتښتېد او د بوري او دهلې له لاري له مات سوي شاه محمود سدوزي او شهزاده کامران سره يو ځای سو او لکه په تېرو کرښو کي چي مو ولوستل، ايران ته يې پناه يوړه.

هسي خو وزيرفتح خان پخپل ژوند کي لا د شاه محمود سدوزي د دوهمي پاچهۍ پر مهال (۱۲۲۵هـ ق =۱۸۱۱ع) خپل ورونه د پاچهي قلمرو د ځينو ولايتو د حاکمانو په توګه شامل کړي ول[۵] خو پر کندهار ښار باندي د کندهاري سردارانو منظمه او بشپړه واکمني له همدې وخته (۱۲۳۴هـ ق =۱۸۱۸ع ) شروع کېږي. د کندهار په نيولو سره د افغانستان د هماغه وخت د سياسي قلمرو مهم ښارونه پېښور، ډېره جات، کابل او کندهار د وژل سوي وزير فتح خان د ورونو تر واک لاندي سول. هرات لا په دغه وخت کي د شاه محمود سدوزي د لښکرو په لاس کي و.

د کندهار د حکومت واګي په دغه وخت کي د سردار شېردل خان په لاس کي وې. ده هغو کسانو ته چي د ښار په نيولو کي يې زړه ورتيا ښوولې وه، انعامونه او دولتي منصبونه ورکړل او په دې لړ کي يې ميرداد خان بارکزي ته د نوموړي د زړه ورتوب او جلادت له امله د ايشک اقاسي

---

[۴] وګورئ : کتاب مستطاب سراج التواريخ، جلد اول، ص ۱۰۲، چاپ مطبعه حروفی دارالسلطنه کابل، ۱۳۳۱ – ۱۳۳۳ هـ ق، دغه راز سراج التواريخ، جلد اول، ص ۱۴۱، چاپ ۱۳۷۲ش، موسسه تحقيقات و انتشارات بلخ، تهران.
کانديد اکادميسن محمداعظم سيستاني پخپل اثر (دو نابغه سياسی نظامی افغانستان، ص ۶۵، چاپ ۱۳۷۱ش) کي د سراج التواريخ د ۱۰۲/۱ مخ په حواله د ميرداد خان د پلار نوم (ملابزرګ) ليکلی دئ، چي په غالب ګومان به يې د(ملابازار) نوم په ناسمه توګه لوستلی وي او يا به يې د سراج التواريخ د مؤلف ثبت ناسم ګڼلی وي. ما د سراج التواريخ د لومړي چاپ ( ۱۰۲مخ) بيا وکوت او راته څرګنده سوه، چي د ملا بازار نوم همداسي راغلی دئ. زما د دې کتاب په پای کي به هم تاسي ولولئ چي د دې کورنۍ مشران نيکه ګان ملا بازارخان او ملا ګلزارخان نومېدل. د هغوی شجرې ما پر کتبي آثارو سربېره د دې کورنۍ د غړو له خولې ثبت کړي دي او د ملا بازار نوم همداسي صحيح دئ.
[۵] سراج ۱۱۳/۱ مخ، چاپ ۱۳۷۲ ش.

منصب ورکړ[٦]. دې واکمنۍ تر ۱۲۵۵ هـ ق پورې دوام وکړ او په دې پوویشتو کلونو کې سردار شېردل خان، سردار پردل خان او سردار کهندل خان د کندهار حکومت چلاوه. په همدې کال د صفري په میاشت کې د انګرېزانو لښکري له سدوزي شاه شجاع سره یوځای پر کندهار راوبهېدلې. کندهار یې له کندهاري سردارانو څخه ونیو او سردار کهندل خان له خپلو ورونو او نوري کورنۍ سره ایران ته پناه یووړه. د نوای معارک مؤلف لیکي، چې وزیر محمداکبرخان د انګرېزانو تر ماتولو وروسته ایران ته د کندهاري سردارانو په نامه لیک ولېږه او له هغوی څخه یې وغوښتل چې کندهار ته راستانه سي (۲۷۰مخ). تر دې وړاندې هم سردار کهندل خان څو واره د پارس له پاچا څخه وطن د تلو اجازه غوښتې وه خو هغه نه غوښتل چې له انګرېزانو سره دایران اړیکي خرابي کړي. کله چې انګرېزان له افغانستانه ووتل، د پارس پاچا هم د سردار کهندل خان له تګ سره موافقه وکړه. سید مهدي فرخ په دې باب کښلي دي:

ترجمه:

"... کله چې هندوستان ته د انګرېزي لښکرو بیرته ستنېدل بشپړ سول، د ایران دولت د کرمان حاکم او د سیستان حکومت ته امر وکړ، چې سرداران (کندهاري ورونه – م . هـ) له لازم قوت سره کندهار ته واستوي او پر حکومت یې کښېنوي. د کرمان والي عباسقلي خان له سردارانو سره سل ماري اوښان له لازمو لارښوونو سره یوځای روان کړل او د محمدرضاخان زوی لطفعلیخان یې ورسره ملګری کړ. سردارانو د ایراني څواک په مرسته کندهار ونیو ... او سردار کهندل خان خپل زوی سلطانعلي خان له سوغاتو سره یوځای تهران ته واستاوه، چې د ۱۲۷۰هـ ق کال د محرم پر نونسمه = ۲۳ اکتوبر ۱۸۵۳ع تهران ته ورسېد. د ایران دولت ورته هرکلي ووایه او میرزا رضاخان کردستانی یې، چې د دارالفنون په مدرسه کې یې تحصیل کړی و، د کندهار د لښکرو د روزني له پاره د ښوونکي په توګه له سلطانعلي خان سره کندهار ته ولېږه او یو زر توپکه او څلور زره تومنه یې هم

---

[٦] سراج ۱۴۱/۱ مخ. میر دادخان بارکزی د لویناب شیردل خان پلار و. د دې کورنۍ په باب د همدې لیکنې په پای کې مختصر بیان ولولئ.

ورکړل[۷]".

انګرېزان چې له کندهاره وتل، د دغه ولايت حکومتي چاري يې شهزاده صفدرجنګ او عطامحمدخان باميزي ته پرېښوولې. کندهاري سرداران چې له ايرانه کندهار ته راورسېدل، شهزاده صفدر جنګ مقابلې ته ځان چمتو کړ. سردارانو د مصلحت له مخې روغې جوړې ته آمادګي وښووله او له شهزاده صفدرجنګ او عطامحمد خان باميزي سره يې په ګډه حکومت جوړ کړ. خو ډېر ژر يې خپله شهزاده بندي کړ[۸] او د کندهار حکومت بېرته د سردار کهندل خان لاس ته ورغی (۱۲۵۸هـ ق کال د مياني مياشت)[۹]. پر کندهار باندې د کندهاري سردارانو دې واکمنۍ تر ۱۲۷۱هـ ق تر پايه (۵۴ – ۱۸۵۵ع) پورې دوام وکړ. په دغه کال سردار کهندل خان او سردار مهردل خان دواړه مړه سول او د سردار رحمدل خان او د کهندل خان د زامنو تر منځ جګړې پيل سوې، چې په نتيجه کې امير دوست محمدخان د دوی ټولو لاس د کندهار له حکومته وکيښ او د کندهار حکومت يې خپل زوی سردار غلام حيدر خان ته وسپاره او په دې ډول د کندهاري ورونو د واکمنۍ په زوال سره د افغانستان تماميت يو وار بيا تأمين سو.

---

[۷] سيد مهدی فرخ، تاريخ سياسی افغانستان، ص ۲۱۳ – ۲۱۴، چاپ حوت ۱۳۷۱ ش.

[۸] نوای معارک، ۲۷۲ مخ.

[۹] وګ : رشاد، عبدالشکور (علامه پوهاند)، د کندهار يادابښتونه ۲/۱۶۳ مخ.

# پر هرات باندي
# د کندهاري ورونو د واکمنۍ هڅې

د ۱۲۳۸ هـ ق کال په څلرمه خور کي شهزاده کامران خپل زوی شهزاده جهانګير په هرات کي خپل جانشين وټاکه (فبروري ۱۸۲۳ع) او وکيل خان (د شهزاده جهانګير ماما) او مهولي خان يې د مرستندويانو په توګه ورسره پرېښوول او پخپله يې د کندهار د نيواو په نيت مخ پر فراه ونيو. فراه ته تر رسېدو وروسته يې د لښکر په راغونډولو پيل وکړ[1]. کندهاري سردارانو ته له فراه څخه د ګلزار خان باميزي له خوا، چي له شهزاده کامران سره يې جوړه نه وه، حال ورکړه سو، چي شهزاده د کندهار د نيولو اراده لري او مخکي له دې چي کار تر کار تېر سي، بايد مخه يې ونيوله سي[2].

سردارانو د دې خبر په اورېدو سره خپل قوتونه راغونډ کړل. سردار مهردل خان او نائب ګل محمدخان يې په کندهار کي پرېښوول او پاته نور درې ورونه، سردار کهندل خان، سردار پردل خان او سردار شېردل خان له دريو زرو سپرو او يو نيم زر پلي لښکر او اوو توپونو سره مخ پر فراه وخوځېدل. د دوی بل ورور سردار رحمدل خان په دغه وخت کي د سنده په ښکارپر کي د واکمنۍ پر ګدۍ ناست و. په دغه لښکر کي نور مخور خانان لکه عبدالله خان اڅکزی، نائب ملا مومن غلجی، رمضان خان هوتک، هوت خان غلجی، يونس خان بارکزی، تاج محمد خان بارکزی، ميرزا احمدخان عمله باشي[3]، حاجي خان کاکړ او ماما خداينظر خان هم ملګري ول. کله چي دا لښکر د خورمالک سيمي ته ورسېد، شهزاده کامران له فراه څخه پښې سپکي کړې او هرات ته يې مخ ونيو.

---

[1] د فراه سيمه تل د هرات او کندهار د واکمنانو تر منځ متنازع فيه سيمه وه.

[2] نوای معارک، ۸۰ مخ.

[3] د ده په نامه د کندهار د احمدشاهي ښار په شمال لوېديځ کي د باباولي صاحب تر کوتل لاندي يوه کلاچه سته.

په فراه کې يې خپل بل زوی شهزاده سلطانعلي پرېښوو. سلطانعلي هم د کندهاري سردارانو له منظم لښکر سره په ځان کې د مقابلې بيچ ونه ليد او له فراه څخه وتښتېد. سردارانو ته فراه بې ټکه و پو په لاس ورغله او دې سوبې په ځان دومره مغروره کړل، چې د سردار شېردل خان په ټينګار يې د هرات د نيولو اراده وکړه. د نوای معارک ليکوال چې په دغه لښکرکښې کې شامل سړی و، ليکي چې کهندل خان او پردل خان د هرات له نيولو سره مخالف ول او غوښتل يې چې يوازې په فراه باندې اکتفاء وکړي خو سردار شېردل خان غوښتل د هرات په نيولو سره له شهزاده کامران څخه د خپل مشر ورور وزير فتح خان د ړندولو او وژلو غچ واخلي.

شهزاده کامران چې له فراه څخه هرات ته ورسېد، د هرات خلکو، چې زياتره يې د ده د پلار، سدوزي شاه محمود له خوا ګومارل سوي مشران او (د هرات امراء) ول[۴]، د ده زوی شهزاده جهانګير له واکه ليري کړی او کامران ته يې ليک ولېږه چې لومړی بايد له کندهاري سردارانو سره، چې د هرات د نيولو په نيت را روان دي، خپل حساب تصفيه کړي، بيا به د هرات په باب خبري کوو. کامران ته يې هرات ته د ننوتلو اجازه ورنه کړه.

کندهاري سردارانو چې مير داود[۵] ته ورسېدل، شهزاده کامران ورته د خپل وکيل شمان اخندزاده په لاس د روغي جوړي پيغام واستاوه، چې پکښې ليکل سوي وه: "له دې وروسته به فراه د سردارانو په واک کې پرېږدي او يو لک روپۍ به د (نعلبندی)[٦] په توګه هم ورکوي، په دې شرط که سرداران د هرات له نيولو څخه تېر سي او بېرته کندهار ته ستانه سي".

---

[۴] نوای معارک، ۸٦ مخ.

[۵] مير داود د هرات – کندهار پر لار د هرات له خوا څخه لومړی رباط دئ.

[٦] نعلبندي يا نعل بها هغو پيسو ته ويل کېږي، چې بېګانه يا يرغلګرو لښکرو ته د بېرته ستنېدلو په عوض کې د ځايي خلکو له خوا ورکول کېږي. په حقيقت کې نعلبندي يا نعل بها يو راز رشوت باج دئ چې مقامي يا د سيمې اصلي اوسېدونکي يې د پرديو لښکرو له خوا پر ځان مني. نعلبندي ته ځايي خلک هغه وخت غاړه ايږدي، چې يا يې له يرغلګرو سره مقابله په وس پوره نه وي، يا له هغوی سره د جوړي کولو په شرايطو کې دغه شرط (نعلبندي) هم ايښوول سوی وي.

سردارانو دا پیغام ونه مانه او کامران یې د جګړې میدان ته راوباله. کامران په ځان کي د مقابلې توان نه لیده، ځکه یې نو مخ پر (لاش) ونیو او ورسره مل مخور یې له خپلو لښکرو سره د کندهاري سردارانو هرکلي ته ورغلل او د هغوی له خوا ونازول سول.

تر دې پېښو وروسته د هرات له ښار څخه د مشرانو او مخورو یوه ډله له سردارانو سره د خبرو په نیت له ښاره راووته. سردارانو ته یې د روغې جوړې وړاندیزونه وکړل، چي د هغو له مخې به سردار کهندل خان په هرات کي پاتېږي، د هرات مالیات به څلور برخي کېږي، دوې برخي به یې شاه محمود، یوه برخه به یې کهندل خان او یوه برخه به یې د هرات (امراوو) ته ورکول کېږي. سردارانو دا وړیش هم ونه مانه او هغه یې په هرات کي د دننه د پرتو قوتونو د کمزورۍ دلیل وګاڼه. په دغه وخت کي کندهاري سردارانو ته د بنیاد بېګ هزاره له خوا هم د هرات په نیولو کي د ملګرتیا پیغامونه ورسېدل، چي دې کار سرداران د هرات نیولو ته نور هم وهڅول. هغوی د هرات ښار کلابند کړ. دې کلابندۍ څلوېښت پنځوس ورځي دوام وکړ او په دې موده کي به په ښار کي دننه د پرتو قوتونو او کندهاري سردارانو تر منځ تر ښار دباندي جنګونه کېدل. سردارانو د هرات له شاوخوا کلیو څخه د څلورو لکو روپو په شاوخوا کي مالیه ټوله کړه او د کندهار خزانې ته یې نقل کړه. د قوتونو د دې زور ازمویلو په ترځ کي سردارانو ته له کندهاره خبر ورسېد، چي سمندرخان بامیزي د کندهار ښار کلابند کړی او ممکنه ده نائب ګل محمد خان هم د هغه په مرسته دننه په ښار کي فعالیت پیل کړي. سردارانو ته چي له یوې خوا د هرات ښار په نیولو کي ستونزي پېښي وي او له بلي خوا یې د کندهار واکمنۍ ته خطر مخامخ سو، په ډېره بېړه یې د هرات کلابندي ماته کړه (۲۵ ذی الحجه ۱۲۳۸هـ ق = ۱۲سپتمبر ۱۸۲۳م) او ځانونه یې کندهار ته ورسول. په دې ډول د کندهاري سردارانو په زړو کي د هرات د نیولو ارمان پاته سو.

سرداران د هرات له لوري څخه خپل قلمرو ته د ګواښ کمولو او د هرات د سمسوري سیمي د تر لاسه کولو په خاطر او په غالب ګومان د پارس د واکمنانو په ټونګ په ۱۸۵۰م کال کي د وزیر یارمحمدخان پر خلاف هم را پورته سول. د مهردل خان زوی شېرعلیخان تر (لاش) پوري

ورسېد او د کهندل خان زوی چخانسور ونيو. خو وزير يارمحمدخان عسکر پر را وخوځول او سردار شېرعليخان يې له (لاش) څخه وشاړه[۷].

تر دې هلوځلو وروسته د کندهاري سردارانو له زړونو څخه د هرات د نيولو مينه ووتله او په کندهار يې سکَتَه (قناعت) وکړه.

ايراني مؤرخ سيدمهدي فرخ ليکي، چې د وزير يارمحمدخان الکوزي تر مړيني (د شعبان وروستۍ ورځ ۱۲٦۷هـ ق = ۳۰جون ۱۸۵۱ع) وروسته چې د هغه زوی سعيدمحمدخان د هرات واکمن سو، خلک د ده له ناپوهۍ او حماقت څخه تر پزې ورسېدل او سردار کهندل خان يې د هرات نيولو ته ور وباله. کهندل خان تر اسفزار (اوسني شين ډنډ) پوري ور ورپاندي سو. خو په دغه وخت کي د ايران د خراسان د واکمن سلطان مراد ميرزا حسام السلطنه لښکري د سام خان زعفرانلو په مشرۍ پر هرات راتوی سوې او کهندل خان د هرات تر نيولو تېر سو او بيرته کندهار ته له خپل لښکر سره ولاړ[۸].

---

[۷] غبار، ۴۰۹مخ.

[۸] تاريخ سياسی افغانستان، ۲۲۱مخ، د ۱۳۷۱اش چاپ.

# د کندهاري ورونو
# سیاسي او ملي دریځ

له سدوزو څخه بارکزو ته د پاچهۍ تر انتقال وروسته، کندهاري سرداران د هغه وخت د کندهار د پراخ قلمرو واکمنان سول. د سردارانو د واکمنۍ پر وخت کندهار نهه زره سپاره او شپږ توپه درلودل. د دوی د قلمرو کلني ماليات يو ميليون روپيو ته رسېدل چي د ورونو تر منځ وېشل کېدل[1] د دوی دغه پراخ او حاصلخېزه قلمرو له يوې خوا له هرات څخه د وزير يارمحمدخان له لوري او له بلي خوا له کابل څخه د دوی د خپل ورور امير دوست محمد خان له طرفه تهديدېدی. د انګرېزانو ګوابښ بيا له جنوب څخه ورته متوجه و، ځکه هغوی غوښتل چي پر افغانستان باندي د خپل ګوډاګي يعني سدوزي شاه شجاع واکمني ټينګه کړي. د دې درو ګواښونو په مقابل کي کندهاري سردارانو نه دومره سياسي درايت درلود، چي د برتانوي او روسي امپراتوريو تر منځ دي د دې منطقې پر سر د ستري لوبي (Great Game) په ماهيت سر خلاص سي او نه يې د خپل پلرني هيواد ملي ګټې تر خپلو شخصي ګټو لومړنۍ ګڼلې، چي د هغو له پاره دي خپل سر او مال نذرانه کړي. ځکه يې نو د سياسي حوادثو له تونديدو سره کله يوې خوا او کله بلي خوا ته ميلان ښوولی دئ خو په نهايت کي يې هر وخت د خپلي واکمنۍ د بقاء په خاطرد پارس او روس دربارو ته پناه وړې ده او له هغوی څخه يې مرسته اخيستې او پر خپل هيواد باندي يې د پارسي لښکرو له را وړاندي کېدو سره مرسته کړې ده. دوی د خپلو نورو ورونو په مقابل کي توري راکښلي وې خو د اروانښاد مير غلام محمد غبار په قول يې د ايران د

---

[1] غبار، ۵۱۴ مخ.

دولت د سر خواست کاوه او ځانونه يې د هغوی (دولتخواهان) بلل[۲]. دوی چې کله واورېدل د انګليسي حکومت استازی الکساندر برنس د دوی له ورور امير دوست محمدخان سره په مذاکره بوخت دئ، د خپل قلمرو د بايللو له وهمه يې ځانونه د پارس په لمن کې واچول او د روس له سفير کينت سيمونيچ سره يې تماس ونيو[۳].

کندهاري سردارانو چې له انګرېزي لښکرو سره کومې جګړې کړې دي، د هغو يو دليل دا کېدلای سي، چې انګرېزانو د دوی د قبيلوي او سياسي رقيب سدوزي شاه شجاع پله نيولې وه او له بلې خوا يې د دوی قلمرو (کندهار) له ګوتو ځيني کيښ.

کندهاري سردارانو د خپل قلمرو پر اوسېدونکو باندې هم چنداني ښهانه نه وه پرې ايښې. قاضي عطاؤالله خان د خپل تاريخ په ۲۳۳ مخ ک (د ۲۰۰۴ ع چاپ) کې د الکساندر برنس له خولې ليکي : د کهندل خان حکومت "... هر دلعزيز بالکل نهٔ دی. ځکه چې هر طرف ته په خلقو باندې زياتی او بې انصافي کيږي ...".

د پښتو ژبې شاعر حاجي جمعه بارکزی، چې په دغه وخت کې ژوندی دئ، د خپل دېوان په ۱۷۴مخ کې د کهندل خان په باب داسې وايي :

اوس نوبت د کندل خان دئ سره وې نغښت کندهار
ودانې يې کړې خرابې عالمونې کړه ناتار
درست وطن يې په حصه کړ سرې واخيست چار برار
دربدره يې مخلوق کړ مال و ملک يې کړ سرکار
په وطن کې يې پرې نښوو يو درم و يو دينار
سروبر يې سره وخور لا دوی وړې دي نهسار
که بانه يې سوه درپوري نور پرپږده ملک و مزار
سرتور سر پښې پيلي درومه ګوره مه ليل و نهار
که دي خپل سر ځني خلاص کړ شکر کاره په باربار

---

[۲] غبار، ۵۱۱مخ.
[۳] غبار، ۵۱٦مخ.

يـو خيـرات هـم پـر ځـان وکـه | کـه پـــه پـوز وي کـه پـه دار
نـه اثـر لـري پـه زړو کـي | نـه لـه خـدايه څخـه ډار
دا عالـم بـه وي خاونـده | لا تـر کـومه پـوري خـوار
نيک و بـد يې دواړه خپل دي | ورسـره يـې خپـل کـردار
"جمعه" خپل مقصود وغـواړه | څـه دي کـار د دوی پـه کـار

که حاجي جمعه بارکزی نن ورځ ژوندی وای، ښايي د حکامو د چور او تالان په باب يې تر دې سخت شعر ويلی وای.

## له کندهاري ورونو سره

# د سيداحمد بريلوي کتنه

د احمدشاهي امپراتورۍ د زوال په وروستيو کلو کي د پنجاب سکهان د يوه لوی ځواک په توګه په سيمه کي مطرح سول. د دې قوت په سر کي مهاراجه رانجيت سنګهـ ولاړ و[۱]. له رنجيت سنګهـ سره انګرېزي ملاتړ هم موجود و او د افغاني سردارانو خپل منځي مخالفتو يې پر ځواک او ژواک باندي نور هم زياتوب راووست. د افغانستان په سياسي ډګر کي د سردار پاينده خان د زامنو د رول له پرمختګ سره د رنجيت سنګهـ د قواوو په وړاندي د سردارانو موقفونه د هغو ذاتي ګټو له مخي سره اوښتل او رااوښتل، چي هر يوه سردار د ځان له پاره سنجولي وې، او د هغو له پاره يې ويني تويولې. سردارانو د سکهانو له قوت سره د خپل تاج وتخت د ساتلو په حساب چلند کاوه. کله به يې ملاتړ کاوه او کله به يې پر ضد جهاد اعلاناوه. خو په عامه ذهنيت کي د سکهانو د قوت له زياتوب سره نوري اندېښنې هم راولاړي سوي وې. د دې اندېښنو شکل مذهبي او ديني عقايدو جوړاوه او محتوی يې د وخت او زمان له غوښتنو سره سمه يو راز و بل راز کېدله. په همدغو مجادلو او مجاهدو کي د هند په لويه وچه کي يو بل قوت راپيدا سو، چي مشري يې د بريلوي سيداحمد پر غاړه وه.

سيداحمد بريلوي په ۱۷۷٦ع کال د هندوستان په بريله کي زېږېدلی

---

[۱] مهاراجه رنجيت سنګهـ (۱۷۸۰– ۱۸۳۹ع) د پنجاب د سکهانو لوی جنرال او مشر و، چي په ۱۷۸۰ ع کال د نني پاکستان په ګجرانواله کي زېږېدلی او په ۱۸۰۱ع کال د مهاراجه په خطاب وغښتول سو. ده د انګليسانو په ملاتړ ټول پنجاب تر خپلي ولکې لاندي راووست. له سدوزي شاه شجاع څخه يې په درغلۍ سره د کوه نور الماس تر لاسه کړ او د پېښوري سردارانو له کمزورۍ څخه په ګټه اخيستني سره پر پېښور هم واکمني ټينګه کړه (۱۸۱۸ع). رنجيت سنګهـ په ۱۸۳۹ع کال مړ سو.

و. له وړکتوب څخه يې اسلامي جذباتو په ذهن کي ښه پوره ځاى نيولى و. په ځواني کي يې د ټونګ د والي اميرخان[۲] سره نوکري پيل کړه. د امير خان په فوج کي يې څه ملګري وموندل او د مسلمانانو د اصلاح کار ته يې ملا وتړله. په ۱۸۲۲ ع کي له خپلو څلورو سوو ملګرو سره د بيت الله شريف زيارت ته ولاړ او څلور کاله وروسته بيرته هندوستان ته راستون سو او په ډهلي کي يې استوګنه غوره کړه. په دغه وخت کي د سکهانو اقتدار زيات سوى و او د پښتنو علاقه او د پېښور مضافات، يې چي په دغه وخت کي د پېښوري سردارانو په واک کي ول، هم تر تهديد لاندي کړي ول. سيداحمد بريلوي د کندهاري سردارانو د ملاتړ په نيامت له خپلو پنځو سوو ملګرو سره د کندهار لورته سفر وکړ[۳]. په دغه وخت کي (۱۲۴۲هـ ق =۱۸۲۷ع) د کندهار واکمني د سردار پردل خان په لاس کي وه او د خپلو نورو وروڼو په مرسته يې حکومت کاوه. د کندهار سردارانو له سيد سره په ښکاره سمه وضعه وکړه د هغه درناوى يې وکړ. د ده ډلي ته يې د کندهار د ډنډ اوسني چوک ته نژدې د سردار رحمدل خان په باغ کي ځاى ورکړ[۴] او د هغه د تحريک په باب يې د کندهار علماوو ته بلنه ورکړه، چي له سيد سره د جهاد او د نوموړي تحريک د مشروعيت او نورو جزئياتو په باب مباحثه وکړي. د سيد بريلوي هيئت د کندهاري علماوو په لړ کي له علامه فاضل کندهاري (حبواخندزاده) سره هم کتلي وه. علامه له دغه هيئت سره، چي په هغه کي مولوي اسمعيل دهلوي هم شامل و، د کابل سفر وکړ. د

---

[۲] پر هندوستان باندي د مغولو د واکمنۍ په دوران کي ځيني پښتني کورنۍ تر نوابيو پوري رسېدلي وې، چي په هغو کي د نواب اميرخان سالارزي پښتون کورنۍ وه. نواب اميرخان سالارزي د مغولي پاچا محمدشاه کورګاني په زمانه کي د ټونګ رياست مشري پر غاړه درلوده. ټونګ په منځني هندوستان کي واقع دئ او اوس د راجستان ايالت يوه ضلع ده. نواب اميرخان پر ټونګ باندي اتلس کاله رياست وکړ او په ۱۲۵۰هـ ق = ۱۸۳۴ع کال مړ سو. د اميرخان په نوابۍ کي د پښتنو پوهانو ډېر قدر کېدى. (د تفصيل له پاره وګورئ: هيوادمل، زلمی، په هند کي د پښتو ژبي او ادبياتو د ايجاد او ودي پړاوونه – ۴۵۱مخ، دوهم چاپ، ۱۳۷۳هـ ش).

[۳] پښتانه د تاريخ په رڼا کښې، ۹۶۳– ۹۶۴ مخونه.

[۴] ميوند مجله، دريم کال، دريمه ګڼه، ۳۰مخ، د طرزي کهول، د علامه رشاد مرحوم ليکنه.

دې هیئت غړو علامه حبواخندزاده ته دومره اخلاص او عقیدت وموند، چې علامه مرحوم لیکي : "روزی در کابل خدمت مولوی اسمعیل شهید رحمه الله تعالی فقیر را در نماز عصر پیش کرد و در عقب فاتحه خواند[۵]".

د نوای معارک لیکونکی شکارپوري میرزا عطامحمد لیکي، چې د کندهار علماوو د سید د جهاد دعوت د یو رازعداوت په معنا وباله او رد یې کړ. د سید له ډلي سره یې څو ورځې پرله پسې بحثونه وکړل او په پای کې سید د کندهارې سردارانو له ملاتړ څخه نامېنده مخ پر کابل وخوځېد[٦]. پر لاري یې د پرتو قومونو په منځ کې د خپل تحریک تبلیغ وکړ او کابل ته ورسېد. په دغه وخت کې د کابل سرداران پخپلو منځو کې په شخړو اخته ول. سید د هغوی د دغه شرارت د له منځه وړلو هڅه وکړه خو بریالی نه سو او په مات زړه پېښور ته ستون سو[۷]. د پېښور سردار یار محمدخان له سید سره لومړی ملا وتړله خو وروسته یې جګړې ورسره وکړې او په دغو جګړو کې یې خپل سر هم وخوړ.

د سید له تحریک سره عامه ملاتړ موجود و او مشهورختیځ پوه جیمز دارمستتر په پخپل کتاب (د پښتنو د شعر هار و بهار) د نورالدین مشهوره چاربیته او نوري عوامي غزلي، چې د سید د تحریک په ملاتړ ویلي سوي وې، راغونډي کړي. د دغه کتاب دوهمه غزله د نورالدین مشهوره چاربیته ده، چې د پنجتار د جنګ په باب یې ویلې ده او په دې کسر پیل کېږي:

روان شه یار محمد سید وباسي له پنجتاره
سید له بری ورکـــړې الهي پروردګاره

د سیداحمد بریلوي د تحریک پر خلاف د هندوستان علماوو هم د دغه تحریک د ځینو افراطي کارونو له امله فتواوي ورکړې، چې سید بهادر شاه ظفرکاکاخېل د دغو فتواوو صادرول د سردار سلطان محمدخان او سکهانو د سازش نتیجه بولي[۸].

---

[۵] شل مقالې – څلورمه برخه، ۱۹۲ مخ.
[٦] نوای معارک، ۱۱۱ – ۱۱۲ مخونه، د ۱۳۷۹ ش کال چاپ.
[۷] نوای معارک، ۱۱۲ مخ.
[۸] پښتانه د تاریخ په رڼا کښې، ۹۷۳ مخ.

د سراج التواریخ مؤلف فیض محمد کاتب هزاره د سیداحمد بریلوي تحریک د (فتنهٔ سیداحمد و مولوی اسمعیل هندی) تر نامه لاندي راوړي ده. زه (هوتک) نه پوهېږم چي دا به د کاتب هزاره خپل قضاوت و، که به یې د وخت د واکمنو ذهنیت ته انعکاس ورکړی و.

سیداحمد بریلوي د ۱۸۳۱ ع کال د مي پر شپږمه د بالاکوټ په سیمه کي له سکهانو سره په جنګ کي شهید سو[۹] او د ده له شهادت سره د تحریک کمبله هم ټوله سوه.

د کندهاري سردارانو د کورنۍ دانشمند غړي سردار غلام محمد خان طرزي د سیداحمد خان بریلوي پر مړینه بانديٍ یوه مرثیه ویلې ده:

سید احمد خان که بود او سید عـــالی نسب
در سخاوت بیعدیل و در شـجاعت بی پدید

از فتوت وزمـروت در جوانـــــردی و داد
نی کسی مثلش شنیده نی کسی مثلش بدید
بی سبب از دست بیدینی شـهادت یافت وی
این چنین ظلم نــمایان کـس بعالم کم شـنید
طـائر روحش درین دنیای فـــانی تنگ بود
جــانب گلــــــزار جنت روح پاک او پرید
هر که آمد در جـــــهان باید چشد جام اجل
خوشدلی آنرا که از دست شهادت می چشید

سال فـــوتش را زپیر عقل دیشب خـواسـتم
مصرعی مـوزون روان از هاتف غیبی شـنید

---

[۹] پښتانه د تاریخ په رڼا کښې، ۹۷۱ مخ.
راجه محمد افتخار علی خان په (پټهانون کی تاریخ) ۵۲ مخ کي (د ۱۹۸۴ ع کال چاپ) د سید د شهادت نېټه مي ۱۸۳۱ ع بللې ده. سراج التواریخ ۱۵۶/۱ مخ کي د سید د شهادت کال ۱۸۴۹ ع بللی دئ. میر غلام محمد غبار په (افغانستان در مسیر تاریخ، ۵۱۵ مخ) کي د سید د شهادت کال ۱۸۳۱ ع بولي.

گفت طرزی بـــهرسال رحلتش برجسته گو
آه وی گـــــردید روز عـید قربانی شـهید
۱۲۴۹ هـ ق

د مقطع وروستي نیم بیتي ته په عدد باندي ۱۲۴۹ کښلي دي، چي له ۳۳ – ۱۸۳۴ع سره سمون لري. ما چي وروستی بیت محاسبه کړ ۱۲۳۹ ځني راوزي. که د (آه) کلمې د سر ممدوده الف دوه چنده سي ۱۲۴۰ ځني راوزي. دا دواړه کلونه د ظفر کاکاخېل، راجه محمد افتخار علي خان او میر غلام محمد غبار له ۱۸۳۱ع سره سر نه خوري ځکه ۱۲۳۹ هـ ق کال له ۲۳ – ۱۸۲۴ع سره او ۱۲۴۰ هـ ق کال له ۲۴ – ۱۸۲۵ع سره برابر دئ.

# د کندهاري ورونو د واکمنۍ زوال

په ۱۲۷۱ هـ ق (۱۸۵۴ع) کال کې لا په کندهار کې له کندهاري سردارانو څخه درې تنه (سردار کهندل خان، سردار مهردل خان او سردار رحمدل خان) ژوندي ول او سردار کهندل خان د واکمنۍ پر ګدۍ ناست او نورو یې واک منلی و. د همدې کال د څلرمي خور پر ۲۷ مه د جمعې په ورځ (۱۵مارچ ۱۸۵۵ع) سردار مهردل خان مړ سو. د ده ماتم لا سوړ سوی نه و، چې سردار کهندل خان هم د استسقاء په ناروغۍ له دنیا څخه سترګې پټې کړې (سه شنبه اوومه د ذی الحجة الحرام ۱۲۷۱هـ ق = ۲۲ اګسټ ۱۸۵۵ع). د سردار کهندل خان مړینې د کندهاري سردارانو په کورنۍ کې د بې اتفاقۍ پر اور باندې تېل وپاشل. سردار رحمدل خان، چې د پنځو ورونو وروستی پاته شخص و، د خانداني دود له مخې ځان د واکمنۍ مستحق باله، خو د سردار کهندل خان مشر زوی سردار محمد صدیق خان ځان د خپل پلار د واکمنۍ بالاستحقاق وارث ګاڼه. دې مخالفت خبره جګړو ته ورسوله. د سردار محمدصدیق خان په پلوي باندې د نوموړي نور ورونه سردار سلطانعلی خان، سردار عبدالله خان، سردار محمدعمرخان او سردار محمدعثمان خان ودرېدل. له سردار رحمدل خان سره د ده خپل زامن سردار محمدعلم خان او سردار غلام محمدخان طرزي، دغه راز د سردار پردل خان زامن هر یوه سردار میرافضل خان، سردار عبدالرسول خان او سردار عبدالاحد خان، د سردار مهردل خان زامنو هر یوه سردار خوشدل خان،حاجي منوردل خان، سردار شیرعلیخان د خپل اکا سردار رحمدل خان پر سیله ودرېدل.

د سردار کهندل خان کور په ارګ کې دننه و، ځکه نو زامنو یې ارګ د ځان له پاره مورچل وټاکه او مقابله یې پیل کړه. د سردار رحمدل خان د ډلې کورونه د ارګ او چارسو په منځ کې واقع وه. دوی له دې خوا پر ارګ باندې بریدونه شروع کړل. څو ورځې یې جګړه وکړه او په دې ترڅ کې له

دواړو خواوو څخه څلور سوه تنه ووژل سول، چي په هغو کي د سردار پردل خان لمسی سردار غلام محمدخان، چي د سردار میر افضل خان زوی و، هم مړ سو[۱]. د ښار خلک د دې جګړو له امله په غاو سول. څکه د دې جګړو له امله د ښار عادي خلکو ته صدمه رسېدله او په ناپامي کي د ښار ډېر بېګناه خلک ووژل سول. وروسته د ښار خلکو سیدان و ملایان پر مرکه کړل، قرآنونه یې یو بل ته شفیع کړل او له دواړو لورو څخه یې وغوښتل، چي له جګړې څخه لاس واخلي. د دې مرکې په حکمیت باندي، په پای کي داسي فیصله وسوه، چي سردار رحمدل خان د کورنۍ مشر دئ باید چي واکمني د ده پر غاړه وي او نور ورېرونه یې باید د کندهار ولایت له مالیاتو څخه د هر یوه له موقف او شان سره سمه برخه ولري. تر ډېرو خبرو او لانجو وروسته د سردار کهندل خان زامنو دا فیصله ومنله. سردار رحمدل خان دوې میاشتي د واکمنۍ پر ګدۍ تېري کړي لا نه وې، چي د مخالفتو اور بیا زور واخیست. څکه چي د کندهار مالیاتو د سردار کهندل خان د زامنو او د هغو د لښکرو خرڅ نه سوای پوره کولای. دا وار یې له امیر دوست محمد خان څخه وغوښتل چي د دوی جوړه ور وکړي. امیر چي دا غوښتنه له خدایه پر اسمان غوښتله خو خدای پر مځکه ورکړله، په چټکۍ سره یې خپل زوی سردار شېرعلیخان (وروسته امیر شېرعلي خان)، چي په دغه وخت کي د غزني حکمران و، کندهار ته له یو منظم لښکر او څو توپو سره واستاوه او پخپله هم څو ورځي وروسته له کابله مخ پر کندهار ور رهي سو. شېرعلیخان ته د کندهار سردارانو هرکلی ووایه، ده او لښکر ته یې د ښار په شمال لوېدیځ کي ځای ورکړ[۲]. سردار شېر علیخان د خپل پلار، امیر دوست محمدخان، تر راتګه پوري، هره ورځ څو څو قطعې عسکر ښار ته ... ایستل او ماښام به یې له ښار څخه د راوتلو پر وخت د خپل ملګري لښکر نیمه نیمه برخه د پردل خان د زوی سردار میرافضل خان په کور کي ځای پر ځای کوله او په دې ډول یې اته سوه تنه عسکر او شپږ توپه په ښار کي

---

[۱] سراج التواریخ ۲/۳۴ مخ.

[۲] وایي دا ځای پخوا د انګرېزانو د لښکر یوه چوڼۍ وه، چي ما ته یې اوس د موقعیت دقیقه ځرګندونه ممکنه نه ده، خو غالباً به د ډنډ د اوسني چوک او پیرپایمال په حدودو کي وه؟

ځای پر ځای کړل[۳]. په دغه وخت کي امیر دوست محمد خان هم له خپل لښکر سره کندهار ته راورسېد. په خورا مهارت او تدبیر یې له سردارانو سره خبري پیل کړې او خپل لښکر یې په ارګ کي ځای پر ځای کړ، د ښار د دروازې کیلي یې خپلو باوري خلکو ته ورتسلیم کړې. نور یې د جوړې خپله طرحه کندهاري سردارانو ته وړاندي کړه، چي په هغه کي یې هر سردار ته د هغه له موقف او دریځ سره برابره برخه وټاکله[۴] او کندهار یې د افغانستان د سلطنتي نظام یوه برخه اعلام کړه. په دې جوړه باندي د کهندل خان زامن سردار محمد صدیق خان، سردار محمد عمر خان او سردار محمد عثمان خان راضي نه ول او هغوی د امیر دوست محمد خان حضور ته حاضر نه سول او په پښت رود کي یې خپل مخالفتونه پیل کړل.

د کندهاري سردارانو ځینو ناراضي کسانو د څه مودې له پاره خپل مخالفت او په ځینو وختو کي وسله وال جنګ ته دوام ورکړ، خو په پای کي یې قدرت او پیسې تمامي سوې، ځینو مخ پر ایران ونیو او ځیني د امیر متابعت ته تسلیم سول.

وایي سردار رحمدل خان یوه ورځ خپل ورور امیر دوست محمد خان ته په کندهار کي د ګیلې په ډول وویل: "کلاهی که بر سر داشتیم، به بازیچهٔ طفلانه از سر ما بر زمین افتاده، بشما عرض و التماس کردیم که از کابل تشریف آورده باز بر سر ما بگذارید، و حال بخلاف خیالی که داشتیم، آن کلاه پاره پاره گشته، هرپاره ای ازآن بهرهٔ دیگری شده، علاوه بر آن

---

[۳] سردار میرافضل خان چي د سردار شېرعلیخان (وروسته امیر شېرعلیخان) خسر و، د همدغو همکاریو له امله د امیر شېرعلیخان په پاچهي کي د کندهار د والي په توګه وټاکل سو.

[۴] په دې برخه کي یې سردار رحمدل خان ته پنځه لکه روپۍ، سردار میرافضل خان ته دوه لکه روپۍ، سردار خوشدل خان ته یو لک و اویا زره روپۍ، سردار غلام محی الدین خان ته یو لک و دوولس زره روپۍ، سردار شیرعلیخان (والي شیر علیخان) ته هم یو لک و دوولس زره روپۍ، حاجي منوردل خان ته اویا زره روپۍ د کاله وټاکلې او نورو سردارانو ته یې تولي دوه لک و شپږ دېرش زره روپۍ کلنی معاش وټاکه، چي هر یوه ته به د هغه له رتبې سره سم وېشل کېږي. وګ: سراج التواریخ ۳۷/۲ مخ.

باعث اقامت شما در قندهار نیز گردید[۵]".

امیر دوست محمدخان ورته مسلي وه او زیاته کړې یې وه: "کلاه شما به بازی طفلانه خود شما پاره پاره شده، اگر من در قندهار درنگ نکرده آهنگ مراجعت کابل کنم، البته شما را نیز برادرزادگان ـ چنانچه بود ـ اطاعت نکرده، باز در فتنه باز خواهد گشت[۶]".

دا میر دغه جواب د کندهار سرداران په ځان خبر کړل، خو دا وخت اوبه تر ورخ اوښتي وې او کندهار د دوی له ګوتو وتلی او د کابل د امیر په واک کې و.

امیر دوست محمد خان د کندهار او شاوخوا سیمو د حالاتو تر کابو لاندې راوستلو وروسته خپل زوی سردار غلام حیدرخان د دغه ولایت د واکمن په توګه وټاکه او سردار فتح محمدخان او سردار جلال الدین خان[۷] یې د هغه د مرستندویانو په توګه ورسره پرېښوول او پخپله کابل ته ولاړ. په دې توګه پر کندهار باندې د کندهاري وروڼو تقریباً اته دېرش کلنه واکمني پای ته ورسېدله (۱۲۷۳ه ق = ۱۸۵٦ع) او د ټول افغانستان اداره د کابل د مرکزي دولت لاس ته ورغله.

---

[۵] سراج التواریخ، ۲/ ۳۷ مخ.

[۶] سراج التواریخ، هماغه ځای.

[۷] سردار جلال الدین خان د وزیر محمد اکبر خان زوی و.

## د کندهاري سردارانو

# د کورنۍ سیاسي او فرهنګي مخور

## د سردار پردل خان کورنۍ

سردار پردل خان په کندهاري سردارانو کې تر ټولو مشر و او پر کندهار باندې د ده د حکومت موده درې کاله وه.

په ۱۲۱٦ هـ ق = ۱۸۰۱ ع کال کې چې شاه محمود سدوزی د سردار فتح خان په مرسته د کابل پر تخت کښېنوست، سردار فتح خان یې د (شاه دوست) په لقب خپل وزیر وټاکه. وزیر خپل ورونه د هماغه وخت د افغانستان په پراخ قلمرو کې د حاکمانو په توګه وټاکل. په دغو ټاکنو کې سردار پردل خان ته د کندهار او د هغه د ملحقاتو (له کلات څخه تر بولان او فراه پورې) واکمني ورسپېده چې بل ورور یې سردار مهردل خان هم ورسره شریک و[1]. په ۱۲۳۲ هـ ق = ۱۸۱٦ ع کال کې چې هرات د قاجاري لښکرو له خوا کلابند سو، د هغه ښار حاکم حاجي فیروزالدین خپل ورور شاه محمود سدوزي ته د مرستې لاس وغزاوه. د شاه محمود سدوزي له خوا وزیر فتح خان له یوه درانه لښکر (دېرش زره تنه) سره هرات ته ولېږل سو. وزیر فتح خان هرات ته له رسېدو سره سم حاجي فیروزالدین د سلا مشورې له پاره وروغوښت او بندي یې کړ. د هرات چارې یې سره تنظیم کړې او له ایراني لښکرو سره د جګړې په نیت له هرات څخه مخ پر کهسان ورووت[2] له ایراني لښکرو سره یې د خرپ توري ووهلې او له میدانه یې وتښتول. د ایراني لښکرو په دغه تاریخي ماتې کې د وزیر فتح خان پر نورو ورونو سربېره سردار پردل خان هم شامل و[3]. قاجاریانو د دغه نظامي

---

[1] حبیبي، تاریخ مختصر افغانستان، ۲۸۰ مخ، ۱۳٦۸ ش چاپ.

[2] کهسان د هرات په شپږ میلۍ کې پروت دئ.

[3] په دغه جګړه کې وزیر فتح خان په خوله کې په ګولۍ وویشتل سو او ټپي یې هرات ته یوت.

سپکاوي د جبران له پاره د شاه محمود زوی شهزاده کامران د فتح خان پر ضد ولمساوه او د دې لمسون په نتیجه کې شهزاده د نومیالي وزیر فتح خان سترګې وکښلې او ړوندې کړ (۱۲۳۴هـ ق = ۱۸۱۸ع). په دغه پېښه کې د وزیر ورونه سردار شېردل خان او سردار کهندل خان له هرات څخه پر وتلو بریالي سول خو سردار پردل خان، چې په دغه ورځ ناروغه و، له آسه ولوېد او د شهزاده کامران لښکرو ونیو. کامران سمدلاسه مخ پر کندهار ونیو او په سترګو ړوند سوی وزیر او سردار پردل خان یې هم له ځان سره ملګري کړل. سردار پردل خان له کامران څخه په څه چل ځان خلاص کړ او ځان یې خپلې پلرنۍ مېنې نادعلي ته ورساوه او د نورو ورونو په ملګرتیا یې په ټول افغانستان کې د انتقام اخیستلو لویه هنګامه پیل کړه. پر کندهار یې لښکر راوخوځاوه او د سردار دوست محمد خان له خوا د شاه محمود سدوزي او زوی یې شهزاده کامران تر ماتولو وړاندې کندهار له نائب ګل محمدخان پوپلزي څخه ونیو.

سردار پردل خان پر سیاسي او نظامي استعداد سربېره د معرفت برخه هم درلوده او علامه محمود طرزي د ده په باب لیکي، چې: "در ظاهر و باطن صاحب معرفت بودند و از مریدان باکمال قطب زمان میان حضرتجی صاحب شمرده میشدند..."[۴].

پردل خان د پښتو شاعري هم کړې ده. په پښتانه شعراء دوهم ټوک کې د ده په باب داسي لولو: "... پردل خان هم په پارسو هم په پښتو شعر وایه، دی متدین او متصوف سړی او په ټولو معناوو یو پښتون سردار و. ده چې په پښتو کم (کوم) اشعار ویلي دي، ټوله په ملي لهجه او د پښتو پر خصوصي بحورو او اوزانو سم دي. په ملي شعر کښې یې د پردو د بحورو پېښې نه دي کړي، نو یې اشعار یو خاص ملي خوندهم لري[۵]".

---

[۴] دیوان طرزی صاحب افغان، دیباچه، ۱٦ مخ.

[۵] پښتانه شعراء، دوهم ټوک، ۴۴۴مخ، پښتوټولنه، کابل، ۱۳۲۱ش. د پښتانه شعراء دغه برخه د علامه حبیبي په قلم لیکل سوې ده، چې د کتاب په (د) مخ کې یې یادونه هم سوې ده. اروابناد غبار هم په (تاریخ ادبیات، ص۱۵۹) کې د پردل خان د شاعرۍ خبره کړې ده.

**په پښتانه شعراء دوهم ټوک او تذکرة الشعراء کي[٦] د سردار پردل خان یوه پښتو بدله ثبت سوې ده:**

وې ګورئ د ګل په شان مي ژړ رخسار د یار دئ          عـالم یـې تمـه دار دئ
یو دي بوی د ګلاب راغی          زړه مـي پـه تـاب راغـی
پروت په بېغمی، وم یو بشر مي په خواب راغی          پر مخ مي سېلاب راغی
ویښ یې کړم له خوبه بیا پېری که انسان راغی          او پر مخ –مخ مي باران راغی
پرې خو به یې نه ږدم چي په مینه کي مي یار دئ          عـالم یـې تمـه دار دئ

ښه صفت دي رنګا رنګ کوم          هـوا دي د پلنـګ کـوم
ستا پـر تـورو زلفـو د رقیبـه سـره جنـګ کـوم          منګولي به په رنګ کوم
او دا مي پېغور نه دئ که شړی، دړېسې لنګ کمه          او ترشا ترشا بدنام و تنګ کوم
نـې لـرم پـروا پـردل د عشـق پـه تهمـت بـار دئ          عـالم یـې تمـه دار دئ

**سردار پردل خان ته د ساه لنډی ناروغي پېښه سوه او د ۱۲۴۵هـ ق کال د ذی القعدة الحرام د میاشتي په وروستی ورځ (شنبه) = ۲۴ جون ۷۸۳۱ ع مړ او د حضرتجي بابا په زیارت کي ښخ سو[٧]. د سردار پردل خان له دوو ښځو (یوه بارکزی بله غلجی) څخه شېر زامن پاته سول.**

---

[٦] تذکرة الشعراء د سراج الدین خان سعید او مولوي صالح محمد هوتک ګډه لیکنه ده، چي په ۱۳٦٦ ش کال په کابل کي د څېړندوی خدمتګار بختاني په زیار سره چاپ سوې ده.
[٧] سراج التواریخ ۱۵٦/۱ مخ.

# سردار میرافضل خان

سردار میرافضل د سردار پردل خان زوی و. مور یې بارکزۍ وه. د ده لور، عایشه د امیر شېرعلیخان ګرانه ماندینه وه امیر ورته په ښه سترګه کتله. د امیر شېر علیخان په پاچهي کي سردار میر افضل خان د کندهار او فراه د والي په توګه مقرر سوی و. ده له امیر شېر علیخان سره د هغه په انګلیسي ضد سیاست کي مرسته کوله. خو د امیر له زامنو سردار یعقوب خان او سردار ایوب خان سره یې جوړه نه وه. ده په لومړي سر کي ښه ډېره زمانه په ایران کي تېره کړې وه. د امیر شېرعلیخان د پاچهۍ په وخت کي د ده په شان عواید هیڅ کوم سردار نه درلودل. لودویک ادمک لیکي، چي د امیر له خوا خورا درانه مواجب ورته مقرر سوي وه. دغه راز یې یوازي د کندهار عایدات دوولس نیم زره روپۍ ول او د فراه له عاید سره پنځوس زرو روپیو ته رسېدل. ادمک زیاتوي چي په ۱۸۸۱ - ۱۸۸۲ع کلونو کي د هندوستان حکومت ورته دوولس زره تومنه ورکړل او ورځخه ویې غوښتل چي په ایران کي پاته سي او هرات ته د ایوب خان مرستي ته ولاړ نه سي.

اروابښاد غبار لیکي، چي پر کندرهار بانَدي د انګرېزانو د دوهم یرغل په دوران کي، چي د سر ډونالډ ستیوارټ په مشرۍ د کوږک او کوټي له لاري د ۱۸۷۸ م کال دنومبر پر ۲۱مه وسو، د کندهار حاکم سردار میرافضل خان و. دی د امیر شېرعلیخان په امر له خپلو قواوو سره د ګرشک او فراه له لاري هرات ته پر شا سو. غبار دا پر شاتګ د امیر شېرعلیخان په غلطیو کي شمېري[1].

سردار میر افضل خان د امیر عبدالرحمن خان په وخت کي، سره له دې چي د فراه د والي په توګه ورسره ژمنه سوې وه، له هیواده د ایران خراسان ته مهاجر سو. وایي چي په سپین ږیرتوب کي یې د احتیاج ژوند تېراوه او د اوقافو په معاش یې ګوزاره کوله. ژوند یې تر ۱۸۸۸ ع پوري

---

[1] افغانستان در مسیر تاریخ، ٦١٦مخ.

يقيني دئ[۲].

میر افضل دیرلس ودونه کړي ول او له هغو څخه يې پنځلس زامن او یوولس لوڼي پاته سوې، چي د سردار پردل خان په کورنۍ شجره کي يې نومونه ثبت سوي دي او تاسي به يې هوري ولولئ.

[۲] لودویک ادمک، هو از هو ان افغانستان، ۱۸۸مخ.

# سردار عبدالوهاب خان

## (امین المکاتب)

سردار عبدالوهاب خان د سردار میر افضل خان زوی او د سردار پردل خان لمسی و[۱]. د میوند د جګړې پر وخت د سردار ایوب خان له پلویانو څخه و او د نوموړي سردار ایوب خان له خوا د هرات والي ټاکل سوی و. کله چې سردار ایوب خان په کندهار کې د امیر عبدالرحمن له لاسه ماته وخوړه (۱۲۹۹هـ ق =۱۸۸۱ع) او مجبور سو ایران ته له خپلو پلویانو سره یو ځای، چې په یوه روایت یې شمېر اتو سوو تنو ته رسېدی او د هرات، فراه، هلمند، کندهار او کابل لویان پکښې ول، پناه ورووړي، سردار عبدالوهاب خان له خپل پلار سره هم په دغه ډله کې ایران ته ولاړ. د سردار میر افضل خان تر مړیني وروسته د پارس قاجاري دولت پر سردار عبدالوهاب خان باندي زور واچاوه چې خپله لور د قاجاریانو د سلطنتي کورنۍ یوه غړي ته په نکاح کړي، خو سردار عبدالوهاب خان دې کار ته غاړه کښېنښووله او هند ته ولاړ. څه موده یې په کراچي ښار کې تېره کړه او د امیر حبیب الله خان د پاچهۍ په سر کې چې د امیر عبدالرحمن خان له خوا ټولي فراري سوي کورنۍ بیرته هیواد ته راوغوښتل سوې، سردار عبدالوهاب هم له خپلي کورنۍ سره خپلي پلرنۍ مېني ته راستون سو او د امیر له خوا د امین المکاتب په توګه وټاکل سو[۲]. دغه دنده یې اووه کاله (۱۹۰۳-۱۹۱۰ع) مخ ته بوتله. په ۱۹۱۰ع کال کې د سرحد د ټاکلو د کمېسیون غړی سو. څه موده وروسته د ترکستان د نائب الحکومه په توګه مزار شریف ته ولاړ او د

---

[۱] مور یې له هزاره قام څخه وه.

[۲] د تقرر خبر یې د سرج الاخبار د لومړي کال په لومړۍ ګڼه پنځم مخ کې خپور سوی دئ.

امیر حبیب الله د وژلو تر وخته هورې پاته و[۳].

سردار عبدالوهاب خان درې ودونه کړي وه. یوه مېرمن یې د خپل اکا (تره) سردار عبدالرسول خان لور وه، دوهمه یې ایرانۍ او دریمه یې د فرغانې وه. له دې درو مېرمنو څخه یې نهه زامن او درې لوڼې پاته سوې.

---

[۳] سیستانی، محمداعظم (کاندید اکادمیسین)، علامه محمود طرزی، شاه امان الله و روحانیت متنفذ، ۴۳-۴۶ مخونه.

# سردار عبدالرحمن خان

نوموړی د سردار عبدالوهاب خان (امین المکاتب) زوی، د سردار میر افضل خان لمسی او د سردار پردل خان کړوسی و. علامه حبیبي یې په جنبش مشروطیت در افغانستان کي یادونه کوي او په منورینو او ترقي غوښتونکو کې شمېري. علامه زیاتوي چي سردار عبدالرحمن خان او ورور یې سردار عبدالحبیب خان د مشروطه غوښتونکو په هغه فرعي ډله کي شامل ول، چي شهزاده امان الله خان هم پکښې غړیتوب درلود ... سردار عبدالرحمن خان د امیر حبیب الله خان (سراج الملة والدین) د پاچهی په پای کي په ډهلي کي د افغانستان د سفیر په توګه ټاکل سوی او د امیر امان الله خان په کابینه کي د پوهني وزیر و[1].

سردار عبدالرحمن خان په ۱۲۴۹ ش = ۱۸۳۳ع کال په فراه کي زیږېدلی دئ. کله چي پلار سردار عبدالوهاب خان د میوند له غازي سردار ایوب سره یو ځای ایران ته پناه یووړه، سردار عبدالرحمن خان او ورور یې سردار حبیب خان (عبدالحبیب خان) هم ورسره وو. سردار عبدالرحمن خان څه موده له خپل پلار سره په تهران کي تېره کړه او په دغه وخت کي یې په ایران کي خپل تحصیلات بشپړ کړل. د امیر عبدالرحمن خان تر مړیني وروسته چي له هیواد څخه ایستل سوو کورنیو ته عمومي بخښنه اعلان سوه، سردار عبدالرحمن خان هم له خپل پلار سردار عبدالوهاب خان سره هیواد ته راغی او په شاهي عسکرو کي شامل سو. دلته یې له مشروطه غوښتونکو سره اړیکي ټېنګ سول او په ۱۹۰۹ ع کال چي د مشروطه غوښتونکو د لومړي غورځنګ غړي بندیان سول، سردار عبدالرحمن خان او ورور یې سردار عبدالحبیب خان هم د ارګ زندان ته واچول سول. څه موده یې په زندان کي تېره کړه او بیرته خوشي سول. په خوشي کېدو کي یې

---

[1] حبیبي، جنبش مشروطیت در افغانستان، ۳۷ – ۳۸ مخونه، د ۱۳۷۷ ش چاپ.

خانداني اړیکو مرسته وکړه. د امیر امان الله خان په کابینه کي د پوهني د وزیر په توګه وټاکل سو او تر څه موده وزارت وروسته هند ته د سفیر په توګه نوي ډهلي ته ولاړ. سردار عبدالرحمن خان له انګرېزانو څخه د خپلواکۍ اخیستلو د جګړې پر مهال د جګړې د متارکې په برخه کي له پېښور څخه تر کابله پوري د پیغامونو رسولو چاره په ښه توګه پرمخ یووړه. د خپلواکۍ تر ګټلو وروسته د بهرنیو چارو په وزارت کي د مامور په توګه وټاکل سو او تر هغه وروسته د فراه او چخانسور د تنظیمیه رئیس په صفت مقرر سو. درې کاله یې دغه وظیفه پر مخ ووهله. په سقوي دوره کي یې پر بند سربېره ډېر مالي و ځاني تاوانونه ولیدل. د نادرخان د سلطنت په سر کي فراه ته ولاړ او هورې مړ سو (۱۳۱۳ش = ۱۹۳۴ع).

سردار عبدالرحمن خان په اردو او انګرېزي ژبو پوهېدی او په پارسي ژبه یې شعر وایه. وایي چي د شعر دېوان یې هم درلود. د ده د شعر یوه نمونه به د ښاغلي محمدولي ځلمي له کتاب (د استبداد او مطلقیت پر ضد د ځینو افغانانو ملي مبارزې) څخه را نقل کړم. ښاغلي سیستاني پخپل نوي کتاب (محمود طرزی، شاه امان الله و روحانیت متنفذ) کي هم دغه رباعي راوړې ده.

یک چند که زیر خاک شد منزل ما
بینی که چه کوزه ها کنند از گل ما
چون بر لب هر دلبری رسد آن کوزه
بیرون شـــود آرزو همه از دل ما

د سردار عبدالرحمن خان پنځه زامن پاته سول : سلطان احمدخان، غلام محمدخان، عبدالله خان، شمس الدین خان او علي احمدخان.

# سردار عبدالحبيب خان

د سردار عبدالوهاب خان امين المکاتب دوهم زوی و. مور يې، سکينه بيګم، د سردار عبدالرسول خان لور وه. دی او ورور يې د علامه حبيبي په قول د لومړيو مشروطه غوښتونکو په يوه فرعي جرګه ګۍ کي شامل وو او شهزاده امان الله خانّ هم له دې ډلي سره اړيکي درلودل او کله چي امير حبيب الله د مشروطه غوښتونکو غوړځنګ وځپی، سردار عبدالحبيب يې هم په ارګ کي بندي کړ[1]. د امير امان الله د پاچهۍ په سر کي د پوهني د وزير په توګه وټاکه سو. علامه حبيبي ليکي چي په کابل کي د مشروطه غوښتونکو ملګرو وېټپيله چي له دې وروسته به وسله د ځانو سره ګرزوي او ويل به يې : امير حبيب الله، نه بلکي عبدالحبيب رئيس. دا خبره که څه هم په ټوکو کي سوې وه خو د امير رپوټچيانو هغه د امير تر غوږه ور ورسوله او دربار پر مشروطه غوښتونکو باندي راوغوړځېد. واييي چي دا پخپله د دربار د دسيسه جوړوونکو له پاره يوه پلمه وه.

[1] جنبش مشروطيت، ۳۸مخ، چاپ ۱۳۷۷ش.

## د سردار پردل خان د کورنۍ شجره




---

* سردار میرافضل خان له ۱۳ ماندینو څخه پنځلس زامن (محمدنعیم، عبدالله، غلام محمد، عبدالوهاب، عبدالواحد، عبداللطیف، محمداعظم، عبدالرحمن، عبدالحکیم، نوراحمد، فتح الله، عبدالقادر، حبیب الله، امین الله ، عبدالحمید، عبدالشکور) او یوولس لوڼي (بي بي تور، رابعه، نوشابه سلطان، رقیه سلطان، امینه، عایشه، فرح سلطان، فاطمه سلطان، سارا، بي بي همدم، بي بي مریم) درلودې. یوه لور (عایشه) یې د امیر شېرعلي خان مېرمن وه.

** په سردار محمدامین خان واده وه. سردار محمدامین خان د امیر عبدالرحمن خان زوی و.

# د سردار شېردل خان کورنۍ

سردار شېردل خان په کندهاريو ورونو کي د عمر په لحاظ دوهم ورور دئ، چي په ۱۲۰۱هـ ق کال زيږېدلی او د ۱۲۴۲ هـ ق کال د محرم پر ۲۵مه د جمعې په ورځ د ۴۱ کالو په عمر په کندهارکي مړ سوی او د حضرتجي بابا په هديره کي ښخ دئ. شېردل خان پر کندهار باندي اته کاله حکومت کړی دئ. دی د شاه محمود سدوزي په پاچهي کي په ۱۲۱٦هـ ق =۱۸۰۱ع کال، چي وزير فتح خان خپل ورونه د افغانستان د ولايتو د حاکمانو په توګه وټاکل، د غزني واکمن سو[۱].

شهزاده کامران سدوزي چي په هرات کي وزير فتح خان د مېلمستيا په وخت کي ونيو او د سترګو له نعمته يې بې برخي کړ، په دغه مېلمستيا کي سردار پردل خان، سردار شېردل خان او سردار کهندل خان هم حاضر ول. د نوای معارک مؤلف ميرزا عطامحمد ليکي، چي له دغي مېلمستيا څخه کهندل خان وتښتېدی، پردل خان د شهزاده کامران په لاس کښېووت او شېردل خان په خورا مېړانه مقابله وکړه او د عين مقابلې په حالت کې ځان له صحنې وکيښ او ګرشک ته وتښتېدی[۲].

وايي هغه وخت چي د سنده ميرانو د کابل واکمن سردار محمدعظيم خان ته د سيد محمدکاظم شاه په لاس سنده ته د ورتګ بلنه ورکړه، سردار محمدعظيم خان او سردار شېردل خان له کابل څخه له خپل څلوېښت پنځوس زري لښکر سره د کندهار له لاري ښکارپر ته ورسېدل (۱۲۳٦هـ ق =۱۸۲۰ع). سردار محمدعظيم خان د ښکارپر ماليې د سنده له ميرانو څخه راټولي کړې او د ښکارپر حکومت يې سردار شېردل خان ته وسپاره. سردار شېردل خان د ښکارپر د حکومت نيابت ملا مومن خان

---

[۱] تاريخ مختصر، ۲۸۰مخ.

[۲] نوای معارک، ۳۱مخ، د ۱۳۷۹ش چاپ.

غلجي ته ورکړ پخپله سردار شېردل خان له سردار محمدعظیم خان سره کندهار ته راستون سو او د کندهار حکومتي چاري يې پخپل لاس کي واخیستې. ملا مومن غلجي په ښکاپر کي اووه اته میاشتي د نیابت چاري په ښه توګه پر مخ بوتلې، د غلو او غدیو ریښې يې وکښلې او کله چي د کندهار له خوا د ښکاپر حکومت سردار رحمدل خان ته وسپارل سو، ملا مومن مخ پر کندهار رهي سو او د نوای معارک مؤلف میرزا عطا محمد يې هم ورسره بوت[۳] وايي چي نائب ملا مومن غلجي او امین الله خان لوګری له وړ کتوب څخه د غازي عبدالله خان اڅکزي کلک انډیوالان او وفاداره ملګري ول[۴]. په هغه ډله کي چي غازي محمد اکبر خان له مکناټن سره د خبرو له پاره د ځان ملګري کړې وه (۲۳ دسمبر ۱۸۴۱ ع) ملا مومن هم شامل و[۵]. دغه خبري د مکناټن په وژلو سره پای ته ورسېدې.

لکه د دې رسالې په سر کي چي مو د (کندهاري وروڼه) په بحث کي په ډېر لنډ ډول کابل ته د سردار شېردل خان سفر ته اشاره کړې ده، دلته به د دې پېښې لړ څه مفصل بیان راوړو.

د سردار پاینده خان زوی سردار محمدعظیم خان په ۱۲۳۸ هـ ق کال = ۱۸۲۲ع مړ سو او د کابل حکومت د ده زلمي زوی سردار حبیب الله خان

---

[۳] نوای معارک ۷٦ مخ. د نوای معارک مؤلف میرزا عطامحمد د سردار شېردل خان په حکومت کي د (مختارکاری) وظیفه درلوده. تر ده وړاندي د سردار شېردل خان مختارکار (عمله باشي) میرزا احمدخان نومېدی. د نوای معارک مؤلف يې د (نجابت اونیک ذاتی) یادونه کوي (۷۸مخ). د کندهار ښار شمال لوېدیځ ته تر باباولي کوتل لاندي د میرزا احمدخان په نامه یوه کلاچه سته چي زموږ تر بحث لاندي د همدې شخص نامه ته منسوبه ده. دا سیمه اوس (۲۰۰۷ع) د ښاروالی یوه ناحیه ده. میرزا عطامحمد په هغه ټول سفر کي له کندهاریو سردارانو سره ملګری و، چي له شهزاده کامران سره د جګړې په نیت له کندهاره مخ پر هرات وروتلي ول (۷۹مخ). مؤلف وايي چي دا جنګ په ۱۲۳۸هـ ق کي پېښ سو.

[۴] نوای معارک، ۲۱۷ مخ.

[۵] وګ: د علامه رشاد ﷫ نوی چاپ سوی اثر، ملي اتل، غازي وزیر محمد اکبر خان، ۱۸مخ. د دې ډلي نور غړي دا کسان وو: محمدشاه خان بابکرخېل او وروڼه يې دوست محمدخان او خدابخش خان، غلام محی الدین خان، او سردار سلطان احمد خان د محمدعظیم خان زوی.

ته ورسېد. سردار عظیم خان په ټولو ورونو کې بډای و او ویل کېږي، چې په دغه وخت کې د کابل په خزانه کې نهه لکه روپۍ نغدي پرتې وې[٦]. دې خزانې او د سردار محمدعظیم خان نور ثروت ته د ده ورونو له پخوا څخه هم نېنګلي وه او کله چې د ده د مرګ خبر د ورونو تر غوږو ورسېد، ټولو مخ پر کابل ونیو. سردار شېردل خان د هرات کلا بندي پرېښووله او تر ځان دمخه یې خپل ورور سردار مهردل ته د کابل د تګ امر وکړ او پخپله هم کابل ته رهي سو. سردار دوست محمد خان چې د سردار محمد عظیم خان په ژوند کې د نوموړي له خوا د کوهستان حاکم سوی و، تر ټولو دمخه کابل ته رسېدلی و. سردار عطا محمدخان له پېښور څخه خپل ورونه سردار یارمحمد خان او سردار سلطان محمد خان کابل ته ولېږل. دوی ټولو په ښکاره له خپل وراره سردار حبیب الله خان سره د خواخوږۍ ادعاوي کولې خو په حقیقت کې یې سترګې هغه ثروت ته نیولي وې، چې له سردار محمدعظیم خان څخه پاته سوی و. دوی ټولو په ګډه سره د سردار شېردل خان په مقابل کې جبهه ونیوله خو په ځو جګړو کې سردار شېردل خان بریالی سو او ځان یې بالاحصار ته ورساوه. په پای کې سردار شېردل خان هم د جوړې په نیت د خپل مشر ورور نواب عبدالجبار خان کور ته مراجعه وکړه او له هغه څخه یې د جنګ او جګړې د پای ته رسولو له پاره مرسته وغوښته. نواب ټول ورونه راغونډ او په سوله یې راضي کړل او د ورونو تر منځ یو تړون هم لاسلیک سو. په دې تړون کې ویل سوي وه، چې هر سردار به په خپله مقبوضه سیمه قناعت کوي او د نورو ورونو په سیمو کې به لاسوهنه نه کوي[٧] او هر سردار د خپل حکومت سیمي ته روان سو. د کابل

---

[٦] سراج ۱۴٦/۱مخ.

[٧] هغه ځلوریځه، چې د دې بحث په سر کې مو ولوستله د نواب عبدالجبار خان په کور کې د سردار شېردل خان له خوا وارووله سوه.

ارواښاد احمدعلي کهزاد په (بالاحصار کابل و پیش آمدهای تاریخی، ص ۴۲۳، چاپ ۱۳۸۳ ش) کې لیکي : سردار پردل خان ته چې د خپل ورور سردار محمدعظیم خان میراث په لاس ورغی، د هغه وخت د کندهار (له مقر څخه تر فراه پوري) نهه پر لسمه برخه حاصلخیزي زراعتي ځمکې یې په رانیولې.

حکومت د سردار شېردل خان له خوا سردار یارمحمدخان ته وسپارل سو. څه موده وروسته سردار یار محمد خان ته د خپل سکه ورور سردار عطامحمد خان له خوا له پېښور څخه حال راغی او دی یې د خپلې ناروغۍ له اسیته سمدلاسه پېښور ته وغوښت. سردار یارمحمد خان د کابل حکومت سردار سلطان محمد خان ته وسپاره او دی پېښور ته رهي سو. پېښور ته د سردار یارمحمد خان له رسېدلو سره سم سردار عطامحمد مړ سو (۱۲۳۹ق =۱۸۲۳ع) او سردار یار محمدخان د پېښور واکمني د ځان کړه. دوه کاله وروسته سردار شېر دل خان مړ سو او سردار دوست محمد خان له کوهستان څخه مخ پر کابل ور وړاندي سو، کابل یې ونیو. سردار پردل خان چي په دغه وخت کي د کندهار واکمن و، د سردار دوست محمد خان په دغه کار وخښمېد او هغه یې له خپل منځي تړون څخه یوه سرغړونه وبلله. پر کابل یې لښکر کښي وکړه. سردار دوست محمدخان هم له کابل څخه د مقابلې په نیت ور وړاندي سو او دواړه لښکري په مقر کي سره مخامخ سوې. په دغه وخت کي د وبا ډېره سخته ناروغي پېښه سوه. دومره سخته وه چي، دواړه لښکر د خپلو مړو په ښخېدلو نه رسېدل. وایي پنځه پنځه، لس لس مړي به یې په یوه کنده کي اچول او خاوري بې پړ اړولې[8]. دې طبیعي بخولي د دواړو لښکرو د مشرانو پر زړو د رحم اوبه تېري کړلې او په سوله راضي سول. د دې سولې په نتیجه کي پر پخواني تړون باندي بیا جوړه وسوه او یو لړ زیاتوني هم پکښې راغلې. تر دغي جوړې وروسته سردار شېردل خان د خپل سکه ورور سردار پردل په ملګرتیا د سردار محمد عظیم خان بې وارثه ثروت پر بوده وو باندي کندهار ته رابار کړ او وایي چي د دغه غیبي خزانې په برکت یې د کندهار د حاصل خېزو ځمکو نهه پرلس برخي رانیولې. د نوای معارک مؤلف چي د سردار شېردل خان له معتمدو خلکو څخه و، لیکي چي د سردار محمد عظیم خان نازولی زوی سردار حبیب الله خان به، چي د پلار د برم په وخت کي به یې دوولس زره لښکر تر شا روان و، د خپلو اکاګانو له خوا تر دې ناخوالو وروسته ولایت په ولایت

---

[8] سراج ۱۵۱/۱ مخ.

لالهانده ګرځېدی او په پای کې کار دومره اوجاړ سو، چې ګدايي به یې کوله[۹].
مؤلف وايي چې د کشمير ثروت ځکه د چاپه ښه نه ورتلی، چې په ظلم باندي را غونډ سوی و. دا ثروت چې د هر چا په کور ننوتلی دئ، پای یې کور هم ورسره وران سوی دئ. د سردار شېردل خان زامن هم وروسته د لیونیو په شان په ټولو ولايتو کي لالهانده او د ګدايي کچکول په غاړه ګرځي[۱۰].

## د شېردل خان وفات:

په ۱۲۴۱ هـ ق = ۱۸۲۵ ع کال د سنده ایالت میرانو د سردار رحمدل خان پر خلاف بغاوت وکړ. سردار شېردل خان چې خبر سو، سمدلاسه یې لښکر برابر کړ او د سردار رحمدلخان مرستي ته رهي سو. هلته سردار رحمدل خان د سنده د میرانو د لښکرو ډېرښت وبېراوه، د الله داد خان انکيزي زوی نائب سلطان خان یې د خپل نائب په توګه په ښکارپر کي پرېښو او پخپله یې مخ پر کندهار راونیو. ذاکر شریف ته چې راورسېدی، د سردار شېردل خان لښکر هم تر ده وړاندي دغه ځای ته رسېدلی و. سردار رحمدل خان له خپل مشر ورور سردار شېردل خان سره وکتل. سردار شېردل خان ته د خپل ورور رحمدل خان تېښته درنه تمامه سوه خو خپل خښم یې وزغامه ځکه چې کار تر کار تېر و. په همدغه شپه پر سردار شېردل خان باندي تبه راغله. په ټکولې تبه کي یې کندهار ته راووست او له همدې ناروغۍ څخه مړ سو او په حضرتجي بابا کې ښخ کړ (۲۵ محرم ۱۲۴۲ ش جمعه = ۳۰ اګست ۱۸۲۶ ع)[۱۱].

د سردار شېردل خان دوه زامن پاته سول:

سردار نورالله خان، چې په کوچنیوالي مړ سو او بل سردار میراحمد خان. زما (هوتک) سره د سردار شېردل خان د پوازني پاته سوي زوی په باب نور معلومات نسته.

---

[۹] نوای معارک، ۱۰۳مخ.
[۱۰] هماغه اثر، ۱۰۴مخ.
[۱۱] سراج التواريخ، جلد اول، ۱۴۹مخ، چاپ ۱۳۷۲ش، موسسهٔ تحقیقات و انتشارات بلخ.
د مړيني د دغي نېټې معادله عيسوي نېټه یو ځای نهمه د اګست ۱۸۲۶ ښوول سوېده.

# د سردار کهندل خان کورنۍ

سردار کهندل خان په کندهاري وروڼو کي د سن له مخي دریم ورور و او پر کندهار باندي یې تر نورو ټولو سکه وروڼو ډېره موده واکمني کړې وه. دی په ۱۲۰۸ ق = ۱۷۹۳ ع کال زیږېدلی او په ۱۲۷۱ ق کال د لوی اختر د میاشتې پر اوومه =۲۲ اګست ۱۸۵۵ع د سه شنبې په ورځ په کندهار کي د استسقاء په ناروغي د ٦۳ کالو په عمر مړ سوی[1] او د حضرتجي بابا په زیارت کي ښخ دئ.

شاه محمود سدوزی چي د سردار فتح خان بارکزي په توره او تدبیر د کابل پر تخت دوهم وار کښېنوست (۱۸۱۱ع) او سردار فتح خان د دغه پاچا په دربار کي د شاه دوست په لقب د وزارت مقام وګاټه، نو یې خپل وروڼه د سدوزو د امپراتورۍ (د هماغه وخت افغانستان) د بېلابېلو سیمو د حکمرانانو په توګه وټاکل. په دغو ټاکنو کي سردار کهندل خان ته د بامیانو حکومت ورسپېدی[2]. دې واکمنۍ یې شپږ کاله دوام وموند (۱۸۲۳ ـ ۱۸۲۹ع). د شاه محمود سدوزي په وخت کي د هرات والي حاجي فیروزالدین (د شاه ورور) د قاجاري لښکرو تر تهدید لاندي راغی او له خپل ورور شاه محمود څخه یې مرسته وغوښتله. شاه محمود له کابل څخه وزیر فتح خان له ډېرشو زرو عسکرو سره هرات ته ولېږی. په دغه لښکر کي د وزیر فتح خان له نورو وروڼو پر څنګ سردار کهندل خان هم شامل و. حاجي فیروزالدین پر وزیر فتح خان باندي باور نه درلود او هغه یې د هرات

---

[1] د استسقاء په ناروغي کي د ناروغ ګېډه له اوبو ډکېږي او پړسېږي. په هغو پاڼو کي چي په انټرنېټ کي د (Barakzai Dynasty) تر نامه لاندي خپرې سوي دي، د سردار کهندل خان مړینه یې هرات ته د تګ په لار کي ښوولې ده او لیکلي یې دي چي د جامي صاحب په زیارت کي ښخ دئ. دا دواړي خبري سهي نه دي.

[2] تاریخ مختصر، ۲۸۰ مخ، د ۱۳٦۸ ش کال چاپ.

ښار ته دننه پرې نښود، خو وزیر هغه د مشورې په نامه له ښاره راوایست او بندي یې کړ. ښار ته یې سردار کهندل خان او سردار دوست محمدخان (وروسته امیردوست محمدخان) ولېږل. سردار کهندل خان او سردار دوست محمد خان د حاجي فیروزالدین خزانې لوټ کړې. په دې لوټ کې د هرات د خلکو عزت ته هم صدمه ورسېده او دا کیسه دومره عامه سوه، چې وزیر فتح خان مجبور سو، خپل ورور سردار دوست محمد خان ته ایداد ورکړي خو هغه کشمیر ته ځني وتښتېدی. سردار کهندل خان په هرات کې له خپل ورور وزیر فتح خان سره پاته سو. وزیر فتح خان چې د هرات چارې سره سمبالي کړې، نو یې مخ د ایران د قاجاري لښکر پر لور ونیوی. قاجاري لښکر د هرات په کهسان نومې سیمه کې پروت و[۳] او د لښکر مشري د شهزاده حسن علي میرزا په لاس کې وه. په مقابل کې د افغاني لښکر په لومړۍ لیکه کې پخپله وزیر فتح خان او د هغه کندهاري ورونه (کهندل خان، شېردل خان او پردل خان) ولاړ وه. په دې جګړه کې سردار کهندل خان ښه د خرپ توره ووهله او ویل کېږي چې، د ایراني لښکر د ماتې یو عامل هم د سردارکهندل خان د قطعې پر وخت برید و[۴]. په دغه جنګ کې وزیرفتح خان هم په خوله کې د ګولۍ ټپ واخیست.

د شاه محمود زوی شهزاده کامران چې د ایران په ټونګ په یوه میلمستیا کې د وزیر فتح خان سترګې په نامردۍ سره وکښلې، په دغه مېلمستیا کې سرداز کهندل خان او دوه ورونه یې (پردل خان او شېردل خان) هم حاضر ول. کهندل خان د دغې پېښې له ځایه وتښتېدی او ځان یې نادعلي ته، خپل قوم ته ورساوه او د شاه محمود پر ضد یې د قوم مشران تر خپل بیرغ لاندې راغونډ کړل او همدا د سدوزي واکمنۍ د ختمولو لومړنۍ هڅې وې، چې وروسته یې له سدوزو څخه و بارګزو ته د پاچهۍ لېږدولو عملیې ته د عمل جامه ور واغوستله.

سردار کهندل خان پر کندهار باندې دوه واره واکمني کړې ده. علامه رشاد رحمة الله عليه لیکلي دي چې:

---

[۳] کهسان د هرات په شېږ میلي واټن کې موقعیت لري.

[۴] هرات، پښتانه او ستره لوبه، ۲۰۹مخ.

"لومړی وار د سردار پردل خان تر مرګ وروسته د ۱۲۴۵هـ ق کال د لوی اختر د میاشتي په لومړۍ هفته کي د کندهار واک د ده سو. دې واري واکمنۍ یې نه کاله و دوې میاشتي پایښت (دوام) وکړ. د ۱۲۵۵هـ ق کال د صفري په لومړۍ هفته (اپریل ۱۸۳۸ع) کي چي د انګرېزانو لښکري د شاه شجاع سدوزي له پاره د پاچهۍ نیولو په پلمه پر کندهار راتوی سوې، سردار کهندل خان له وروڼو سره ایران ته ولاړ. د ۱۲۵۸هـ ق (۱۸۴۳ع) کال د میانۍ په میاشت کي یې بیا کندهار ونیوی او تر مرګه ... پورې دیرلس کاله نور د کندهار واک د ده په لاس کي و[۵]".

کهندل خان درې ودونه کړي ول. لومړۍ مېرمن یې الکوزۍ وه، دوهمه یې پوپلزۍ (د سعدالله خان لور) او دریمه یې قزلباشه وه. له دې درو مېرمنو څخه یې شپږ زامن پاته سول (وګ : د ٦٢ مخ شجره). د ده اولاده په کندهار کي د (میوند په محمدزو) باندي مشهوره ده.

---

[۵] وګ : د حاجي جمعه بارګزي دېوان ته د علامه رشاد سریزه، ۲ مخ، کابل ۱۳٦۰ش. په نقل قول کي د هجري قمري نېټو معادل عیسوي کلونه ما (هوتک) وراچولي دي.

## سردار غلام محی الدین خان

د کهندل خان زوی و. د خپل پلار له خوا د دهراوت د حاکم په توګه ټاکل سوی و. د میوند په تاریخي جنګ کي د غازي سردار ایوب خان په پلوي ولاړ و. کله چي امیر عبدالرحمن خان د کندهار په جګړه کي غازي ایوب ته ماته ورکړه، سردار غلام محی الدین خان یې کابل ته نظربند بوت او هورې مړ سو. قبر یې په شهدای صالحین کي دئ[1].

## سردار احمدجان خان

د سردار غلام محی الدین خان زوی و. د پلار د مړیني پر وخت په کابل کي و. وروسته کندهار ته راغی او د میوند په لوی کارېز کي اوسېدی. په ۱۹۲۴ع کال مړ سو او په میوند کي پخپله هدیره کي (د میوند مانده ته څرمه) ښخ دئ.

## سردار محمدهاشم خان

د نادرخان په پاچهي کي د کندهار په (مجلس مشوره) کی وکیل و ځکه نو په وکیل محمدهاشم باندي مشهور و. اولاده یې نه ده پاته سوې.

## فرید میوندي[1]

فرید میوندي د محمدزمان زوی د سردار عبدالرحمن خان لمسی د سردار احمدجان خان کړوسی د سردار غلام محی الدین خان کوسی او د سردار کهندل خان کودی دئ. د امریکا د متحده ایالاتو په کلیفورنیا کي اوسي. په انجنیري کې تحصیلات بشپړ کړي دي. په فارسي ادب کي یې

---

[1] د کورنۍ روایت یې د فرید میوندي له خولې.

[1] فرید میوندي د خپلي کورنۍ شجرې او هغه عکس چي ویل کېږي، د کهندل خان دئ، ما ته رالېږلی دئ چي کور ودانی ورته وایم.

مطالعه کړې ده او په پښتو ژبه شعر وايي. تر اوسه يې څلور پنځه زره بيته ويلي دي او دا سې ښکاري چې د دېوان په لټه کي دئ. دا څلوريځه د ده ده:

بيا مي پـه سر کي ستا د ميني شور و شر وګوره
په بيمار زړه کي مي دا ستا د عشق شرر وګوره
چي تر اکسير يې تأثير ډېر دئ ستا د ميني اشنا
پـــر مين زړه مي ستا د ميني خوږ اثر وګـوره

## د سردار کهندل خان د کورنۍ شجره




---

* سردار نورمحمد خان د امیر شېرعلي خان او سردار محمدامین خان تر منځ د کجباز په جگړه کي د امیر شېرعلي خان په لښکرو کي جنگېدی او په همدې جگړه کي مړ سو، (گلشن امارت، ۱۳٦ مخ).


کهندل خان
سردار غلام محی الدین خان
سردار احمد جان خان
سردار عبدالله خان
سردار عبدالقادر خان
محمدبهادر
احمدنادر
محمدنادر
زرین تاجه
قمر سلطانه
جواهر سلطانه
عبدالغني
حیات الله
سارا
میمنه
آمنه
پري
عظیمه
عصمت الله
عبیدالله
سعدالله
شاه ولي


کهندل خان
سردار غلام محی الدین خان
سردار احمد جان خان
سردار حبیب الله خان
مریم
تفسیره
سعادتو
مروارید
سردار عبدالعزیز خان
نعمت الله
رشید جان
محمد طاهر
عبدالاحد
فتح الله
میریالی
شاه محمد
شفیق
نسرینه
پروینه
زرمینه
امان الله
محمد قاسم
احمد شاه
بریالی
تنگیالی







* مرغلره، ملالی، شهلا، هما، فرزانه، هیلینا، ګیتا، [redacted].

** پاچاګله، ثمرګله، ګلالی، پښتنه، فرحنا، اناهیتا.

# د سردار رحمدل خان کورنۍ

سردار رحمدل خان د سردار پاينده خان زوی و، چي په ۱۲۱۱هـ ق کال په کندهار کي زېږېدلی او د سراج التواريخ د مؤلف په قول په ۱۲۷۵ هـ ق کال په رجب کي په تهران کي مړ سوی او د نجف په وادی السلام کي ښخ دئ[۱]. دی په کندهاريو سردارانو کي د عمر په لحاظ څلرم ورور و. پر کندهار باندي د سردارانو د واکمنۍ په سر کي سردار رحمدل خان د ښکارپر د حکومت په چارو کي مصروف و او د ميرزا عطامحمد په قول، کله چي شهزاده کامران له هرات څخه د کندهار د نيولو په نيامت لښکر را وخوځاوه او کندهاري سرداران هر يو کهندل خان، پردل خان او شېردل خان له نورو مخورو سره د مقابلې په نيت له درو زرو سپرو او يو نيم زر پياده لښکر په مشرۍ فراه ته ور وړاندي سول، سردار رحمدل خان به د ښکارپر په حکومت کي خپل هوسونه کول[۲].

سردار رحمدل خان تر ۱۲۳۹هـ ق؟ پوري په ښکارپر کي و او کله چي سردار شېردل خان له کابل څخه په ښه زړه او د سردار محمدعظيم خان له ثروت څخه په ډکو لاسو کندهار ته راستون سو، نو يې رحمدل خان هم له ښکارپر څخه کندهار ته راوغوښت. رحمدل خان سم د لاسه مخ پر کندهار را روان سو او عبدالمنصور خان خيرپور يې د خپل نائب په توګه په ښکارپر کي پرېښود. د سردار رحمدل خان تر وتلو څلور مياشتي وروسته د خالصه سنګهه فوجونه د ښکارپر د نيولو په نيت سره وښورېدل[۳].

شاه شجاع چي د ۱۲۵۰هـ ق کال د محرم الحرام په مياشت = مارچ

---

[۱] په هغه مرثيه کي چي تاسي به يې د همدې بحث په ترڅ کي ولولئ، د نوموړي د وفات نېټه د ۱۲۷۸هـ ق کال د شوال مياشتي نيمايي د يکشنبې ورځي مازيګر ښوولی دئ.

[۲] نوای معارک، ۸۱ مخ.

[۳] نوای معارک، ۱۰۴ مخ.

۱۸۳۴ع کي کندهاري سرداران په ښار کي کلابند کړل، سردارانو له خپل ورور سردار دوست محمد خان څخه مرسته وغوښتله او نوموړی هم له کابل څخه له خپل لښکر سره مخ پر کندهار راوکوچېد. د کلابندۍ په دوپنځوسمه ورځ (سه شنبه ۲۲ صفر ۱۲۵۰ه ق = جولای ۱۸۳۴ع) کندهاري سرداران له ښاره ووتل او تر کلا دباندي یې د شاه شجاع لښکرو ته کمین ونیو. په دغه وخت کي سردار رحمدل خان له خپلو سپرو او پیاده وو سره د باباولي صاحب د کوتل پر لور ووت او د جلیران، مرغان او ګونديګان له لاري یې د دښمن د لښکر شا ته څو (کمین) ونیو. په دغه جنګ کي شاه شجاع ماته وکړه او د هرات پر لور وخوځېد. هغې خوا ته یې څه لاس ته ورنغلل او مخ یې پر بلوچستان ونیو او محراب خان بلوڅ ته یې پناه وروړه. سردارانو له کندهار څخه سردار رحمدل خان له پنځوسوو سپرو سره پسي ولېږی. محراب خان بلوڅ سردار رحمدل خان ته په ننواتو ور ورېاندي سو[۴]. علامه رشاد رحمه الله لیکي چي محراب خان د داروغه ګل محمد په لاس سردار رحمدل خان ته پیغام ولېږی او سردار هم د محراب خان پرده وکړه او بیرته کندهار ته ستون سو[۵]. سلطان محمد پاني د خپل کتاب (کوټه - لنډه تاریخي جایزه) په ۲۹ مخ لیکي : "د محمدزو او سدوزو د اړدوړ په وخت کي پر کوټه د محراب خان بروهي خان کلات له خوا ملک دینار محمد شهي نائب مقرر شوی و او کوټه خان د څان بللې وه. خو سردار رحمدل خان د سیوۍ له خوا څخه له څه جنګي سامانه او لښکر سره کوټي ته راغلی او ملک شهي یې د کوټي څخه ویوست او کلا یې په خپله قبضه کي راوستله".

سردار کهندل خان سردار مهردل خان سره له لښکرو د سردار رحمدل خان د امداد له پاره ولېږه. له کوټي بعد یې مستونګ هم قبضه کړ".

سردار رحمدل خان په هغه لښکر کي شامل و، چي د سردار کهندل خان په مشرۍ او د سردار مهردل خان په ملګرۍ کابل ته له امیر دوست محمد خان سره د جنګ په نیت خوځېدلی و. دا جنګ ونه سو او دواړو

---

[۴] سراج التواریخ، ۱/ ۱۷۳-۱۷۴ مخونه.

[۵] د کندهار یادابښتونه ۲/ ۱۶۲ مخ.

خواوو په مقر کې سوله وکړه[٦].

سردار رحمدل خان د کهندل خان تر مړيني وروسته فقط دوې مياشتې د کندهار حکومت وکړ او د کهندل خان له زامنو سره چې په سر کې سردار محمدصديق خان و، په جګړه اخته سو، ځکه چې نوموړي د دغې واکمنۍ له پاره ځېل ځان مستحق ګاڼه. د دې جګړې په نتيجه کې کندهار د کندهاري سردارانو له لاسه ووت او د کابل د امير دوست محمد خان په قلمرو کې شامل سو. سردار رحمدل خان له نورو مانيجنو ترېرو سره ايران ته بار سو او په تهران کې يې واړول. د ايران شاه هغوی پخپل حمايت کې راوستل او سردار رحمدل خان په ايران کې په يوه روايت تر درو کالو او په بل روايت تر شپږو کالو استوګنې وروسته مړ سو.

د ده د زوی سردار غلام محمدخان طرزي د دېوان د قصايدو په ۱۷۷مخ کې يې د مړيني د تاريخ يوه قطعه راغلې ده، چې د دېوان مرتب وايي په يوه بله نسخه کې يې موندلې او د کتاب په پای کې يې ور اچولې ده.

بر چرخ نه چنبر، چيزيست بهم گردان
گه ثور و اسد خوانند، گه قوس و بزميزان

نی صورت شان ظاهر، نی هيئت شان حاضر
نی مقصد شان باهر، برگردش خود حيران
هر پای که بر دارند، بر باد دهد خلقی
هر جای که رو آرند، صد شهر کند ويران
سخت است جفای شان، سست است وفای شان
بيش است بلای شان، بر جان و دل ياران

[٦] علامه رشاد د تاريخ سياسی افغانستان، ۱٦۳ مخ په حواله ليکي چې تر روغې وروسته "سردار رحمدل خان له سردار محمد اکبر خان سره کابل ته ولاړ او له امير دوست محمد خان سره يې دوستانه ليدنه وکړه". وګ : د کندهار يادابښتونه، ۱٦۷/۲مخ. دا مطلب د تاريخ سياسي افغانستان د دوهم چاپ، ۱۳۷۱ش په ۲۱۸ مخ کې راغلی دئ. خو د سراج التواريخ د ۱۳۷۲ ش کال چاپ په ۷/۲ مخ کې ويل سوي دي، چې تر دې سولې وروسته سردار رحمدل خان کندهار ته ولاړ او سردار مهردل خان له سردار غلام حيدر خان او سردار محمد اکبر خان سره کابل ته د امير دوست محمد خان د ليدو له پاره ولاړل.

گه شاهجهانی را، بر تخته نــــهد تختش
گه مرد فقیری را، بــــر چرخ کشد ایوان
بر تختهٔ مـــرگ افگند، در بیکسی و غربت
شاهی که بشان او، شاهـــان جهان حیران
بر مرد و زن افـــغان، میکرد زبس رحمت
شد نام شریف او، ســـردار رحمدل خان
سرخیل هـــمه افغان، در اصل دُر دُران
از ســوی وطن آمد، شـــادان بـــرهٔ ایران
شـــاهنشهٔ ایـــرانش، از رتبه و جـــاه او
بر صدر نشانیدش، با عـــزت و با صد شان
آخر بد و صد حسرت، از دست اجـــل نوشید
پیمانهٔ مرگی را، کـــز درد برفتش جـان
در وقت وفـات خود، با شـــاه وصیت کرد
نعشم برسان شـــاها، در پای شهٔ مردان
از پهلوی دینداری، این رتبه و عـــزت یافت
آسود بران مرقـــد، از همدمی قـــرآن
برنیم مـه شوال، در آخـــــر یکشنبه
بر ملک فـــنا زد پا، در مملکت طهران
چون بود بهار جان، در باغ و دل طـــرزی
جو سال وفـــات او، "وزباغ بهار جان"

په دېوان کي د مقطع وروستي نيم بيتي ته ۱۲۷۸ ليکل سوي دي او ما چي يې محاسبه وکړه، دغه عدد له (وزباغ بهارجان) څخه لاس ته راځي. لکه تاسي چي وړاندي ولوستل د سراج التواريخ مؤلف د سردار رحمدل خان د مړيني کال رجب ۱۲۷۵ ښوولی دئ[۷]، چي له فبروري ۱۸۵۹ع سره سر خوري او ما د دې کتاب په سر کي هم رانقل کړی دئ.

د سردار رحمدل خان اووه زامن او درې لوڼي پاته سوې.

---

[۷] سراج ۳/۲ مخ جدول.

# بي بي حوا

بي بي حوا د سردار رحيمداد خان لور او د حاجي جمال خان نيکه لمسۍ وه، چې په کندهاري سردارانو کې په سردار رحمدل خان واده وه[۱]. سردار رحمدل خان د دې مېرمنې د اکا زوی و. سردار محمدعظيم خان (مشهور په حبيب جان)، سردار محمدعلم خان، سردار غلام محمد خان طرزي، محمد سرورخان، سردار غلام حيدرخان، سردار محمد قلي خان او سردار ګل محمدخان د بي بي حوا زامن وه. يوه لور (تاج النساء) يې په سردار تاج محمدخان واده وه. دغه سردار د سردار سلطان محمد خان طلايي د زوی سردار ذکريا خان زوی و.

د دې مېرمنې په نامه د کندهار په احمدشاهي ښار کې يوه فرعي کوڅه سته، چې د دغې کوڅې او پخپله د بي بي حوا په باب ما پخپل اثر (احمدشاهي کندهار، ۲ ټوک) کې لږ څه تفصيلي بيان کړی دئ. درانه لوستونکي دې هورې ولولي. په دغه اثر کې زما څخه داخبره پاته سوې وه، چې پخوا په دغه کوڅه کې د بي بي حوا په نامه يو مسجد هم و[۲].

---

[۱] ما (هوتک) په احمدشاهي کندهار دوهم ټوک، ۵۰ مخ کې بي بي حوا د سردار رحمدل خان مېرمن بللې ده خو د اروانښاد سيد قاسم رشتيا د يوې ليکنې له امله، چې دغه مېرمن يې د سردار مهردل خان کونډه بللې وه، د خپل روايت په باب شکمن سوی وم. دغه شک اوس ليرې سوی دئ او زما تورو ځېړنو د دې خبرې د يقين پله درنه کړه، چې بي بي حوا په سردار رحمدل خان واده وه. د احمدشاهي کندهار دوهم ټوک که دوهم وار چاپېږي، بايد دغه يادونه پکښې وسي.

[۲] ګران عمر واحديار له کندهاره راته وليکل (مې ۲۰۰۸ع) چې دا مسجد اوس هم په همدې نامه پاته دئ او د بي بي حوا کور هم، چې د خرما درخته پکښې ولاړه وه ولاړ دئ او يوه برخه يې د ډاکټر نجيب الله په وخت کې د نوو سړکو د جوړولو پر وخت له منځه تللې ده.



د بي بي حوا مسجد – د عمر واحد يار راليږنه

# د سردار رحمدل خان د کورنۍ شجره




* مشهور په حبیب جان.
** د سردار غلام محمد خان طرزي او د هغه د زامنو شجرې به په وروستیو پاڼو کې راسي.
*** په کوچنیوالي کې مړ دئ.
**** نظر محمد خان په کندهار کې په ۱۳۵٦ هـ ق کې سل کلن مړ سو، (رشاد، میوند مجله، دوهم کال، دریمه گڼه، ۳۰ مخ).

# سردار غلام محمد خان طرزي

## (طرزي افغان)

سردار غلام محمد خان طرزي د سردار رحمدل خان زوی او د سردار پاینده خان لمسی و، چي په ۱۲۴۵ هـ ق =۱۸۲۹ع کال د کندهار په ښار کي زېږېدلی و. د ده د زېږېدو تاریخي ماده په دې بیت کي ښوول سوې ده:

از باغ بــهار دل طـلب تاریخش
زیرا که دل از ولادتش یافت نوید [۱]

د سردار غلام محمد خان د ځواني زمانه پر کندهار باندي د کهندل خان د حکومت وختونه وه او نوموړي د خپل اکا (کهندل خان) د حکومت په کلونو کي او دغه راز د خپل پلار سردار رحمدل خان د حکومت په شپو ورځو کي زیاتره په علمي او فرهنګي کارو باندي ځان مصروف کړی و. په نظامي فعالیتو کي یې چي مجبور به نه سو، برخه نه اخیستله. ده په هغه جګړه کي، چي د ده د پلار او اکا تر منځ پېښه سوې وه، ښه توره وکړه او له همدې امله یې د پلار له خوا هغه توره د انعام په توګه وګټله، چي وایي د صفوي پاچهانو د زمانې وه او افغاني واکمنانو ته لاس پر لاس رسېدلې وه په دې لړ کې د سردار رحمدل خان ګوتو ته ورغلې وه. سردار غلام محمدخان په هغو جګړو کي هم د کندهار ښار د ساتني وظیفه پر غاړه اخیستې وه، چي د کهندل خان تر مړيني وروسته د ده د زامنو او سردار رحمدل خان تر منځ سوي وې [۲]. لکه په تېرو پاڼو کي چي هم تاسي ولوستل، په دغو جګړو کي د کندهار اولس او سردارانو په ګډه امیر دوست محمدخان ته بلنه ورکړه، چي له کابل څخه کندهار ته راسي او د دغو کورنیو اختلافاتو په له منځه

---

[۱] په دغه بیت کي "باغ بهار دل" تاریخي ماده ده، چي ابجدي ارزښت یې ۱۲۴۵ کېږي.
[۲] دیوان طرزی افغان، ۵مخ.

وړلو کي مرسته وکړي. امیر، چي داسي موقع يې له خدايه غوښته، په ۱۲۷۲هـ ق =۱۸۵۶ع کال کي کندهار ته له لښکرسره راغی او له کندهاري سردارانو څخه يې کندهار واخيست او په دې ډول يې د افغانستان مرکزيت یو وار بيا تأمين کړ. امیر د سردار کهندل خان زامن او دغه راز د سردار رحمدلخان زوی سردار محمدعلم خان او د سردار محمدعظيم خان زوی سردار سلطان احمد خان (مشهور په سرکار) يې له کندهاره وشړل. سردار رحمدلخان هم ایران ته دتګ اراده وکړه او تر تګ دمخه يې خپل زوی سردار غلام محمدخان د خپل وکيل او وصي په توګه وټاکه او د کندهار د جایداد اختیار يې وروسپاره. سردار رحمدل خان چي ایران ته ورسېد، نو يې په تهران کي واړول او په ۱۲۷۵هـ ق کال یا ۱۲۷۸هـ ق کال په هماغه ښار کي مړ او د نجف په وادی السلام کي ښخ سو. دغه وخت د ټول افغانستان اداره د امیر دوست محمدخان په لاس کي وه او ويل کېږي چي سردار غلام محمد خان هم د یوه مخور مشر په توګه له امیر سره کومکونه کول او امیر ورته د (ارجمند دانشمند) لقب ورکړ او د کاله يې ورته یو لک و شل زره روپۍ اعزازي تنخواه مقرره کړې وه. د امیر دوست محمدخان په پاچهي کي سردار غلام محمدخان طرزي زیاتره په کابل کي اوسېدی او داسي ښکاري چي امیر هم غوښتل خپل ورېرونه تر خپل نظر لاندي په کابل کي استوګني ته مجبور کړي. سردار غلام محمدخان طرزي په کابل کي د استوګني پر وخت د امیر کبیر دوست محمدخان په مدحه کي خورا درنې قصيدې ویلي دي، چي په دېوان کې خوندي دي. سردار غلام محمد خان له امیر کبیر سره په هغه جګړه کي هم ملګری و، چي د هرات د نیولو په نیامت يې له سردار سلطان احمدخان (د امیر کبیر وراره او زوم) سره کړې وه. د دغې جګړې په ترڅ کي د هرات ښار څورلس میاشتي کلابند و او سردار سلطان احمدخان غوښتل چي د روپو او تطمیع په وسیله د امیر د لښکر ځیني مخور سرداران د ځان خوا ته ورواړوي. په دې لړ کي يې سردار غلام محمدخان ته هم په پټه خورا درونږ مبلغ رالېږلی و، چي د سردار له خوا رد سوی و. امیر دوست محمدخان چي په دغه وخت کي د مرګي په خوږ رنځور و، د دې خبر په اورېدو سره يې سردار غلام محمدخان ته ډېري دوعاوې کړې وې. د امیر دوست محمدخان تر مړيني وروسته (سه شنبه

۲۱ ذیحجه ۱۲۷۹هـ ق = ۹ جون ۱۸٦۳ ع) چي امیر شېرعلیخان د افغانستان د پاچهۍ پر تخت کښېنوست او تر هغه وروسته بیا امیر محمدافضل خان او امیر محمد اعظم خان پاچهیو ته ورسېدل، د سردار غلام محمدخان عزت او قدر هماغه د پخوا په شان خوندي ساتل سوی و. د امیر شېر علیخان په دوهمه پاچهي کي (۱۲۸۵هـ ق = ۱۸٦۸ع) سردار غلام محمد خان د نورو سردارانو په شان له نظره ولوېد او څه موده بندي هم سو، چي وروسته له بنده خوشي او د تقاعدۍ معاش ورته مقرر سو. د امیر شېر علیخان پاچهي پر افغانستان باندي د انګلیسي عسکرو په یرغل سره پای ته ورسېده (۱۲۹٦هـ ق = ۱۸۷۹ع) افغان اولس له انګلیسانو سره د جهاد اعلان وکړ. د دې جهاد علمبردار غازي سردار محمدایوب خان و او سردار غلام محمدخان په دغه وخت کي د غازي سردار په خوځښت کي شامل سړی و. د میوند تر تاریخي غزا وروسته سردار عبدالرحمان خان د انګلیسانو په مصلحت په چاریکار کي د افغانستان د امیر په توګه وټاکل سو او لکه څرنګه چي د افغانستان په تاریخ کي د سردارانو دریځونه له یوه اړخه بل اړخ ته اوړي، د همدې دوراندیشۍ له امله سردار غلام محمد خان خپل مشر زوی محمود طرزي چاریکار ته ور ولېږی. امیر په ښکاره ورسره د مهربانۍ وضعه وکړه او سردار غلام محمدخان ته یې د وزارت ورکولو ژمنه هم وکړه، خو په زړه کي یې پټ پلان ورته ساتلی و او کله چي یې د کندهار په پیرپایمال کي د سردار محمدایوب خان لښکر ته ماتې ورکړه، د ده د تحریک پخواني غړي او د کندهاري سردارانو ټول متنفذ شخصیتونه یې له وطنه وشړل او جایدادونه یې ضبط سول.

علامه حبیبي د سید مهدي فرخ د تاریخ سیاسي افغانستان په حواله لیکي: د امیر عبدالرحمان خان جاسوسانو امیر ته خبر ورکړ، چي سردار غلام محمدخان طرزي په یوه مجلس کي یوه هراتي ته ویلي وه، چي : دا دئ سردار محمدایوب خان به له خیره سره بریالی له ایرانه راستون سي. امیر چي په دې جریان خبر سو، د سردار غلام محمد خان طرزي د جایداد د ضبط او له وطن څخه د شړلو امر یې ورکړ او نوموړی هراتي یې د هرات د غوریانو په سرحد کي د ناجوګانو د ونو پر سرو باندي په قفس کي



سردار غلام محمد خان
طرزي افغان

ځنځیر تړلی واچاوه او ورته وې ویل: وګوره چې د سردار محمدایوب خان ټولی ځرنګه له ایرانه راستنیږي[۳]. هراتی په هماغه قفس کې له لوړې مړ سو. په دې لړ کې سردار غلام محمدخان هم درې میاشتې بندي کړ. ده د کندهار په بندیخانه کې هم غوښتل چې امیر عبدالرحمن د خپل ادبي استعداد په افسون د مدحییه قصیدو ښکار وګرزوي[۴] خو تور امیر د دې سړی نه و، چې ځانته د لستوڼي ماران پرېږدي او په دې لړ کې سردار غلام محمد خان طرزي له وطنه په ډېره ناوړه توګه وشاړه (۱۲۹۹هـ ق = ۱۸۸۲ع) د کندهار جایداد یې ټول ضبط سو. دی یې د خپلې کورنۍ له پنځه دېرشو کسانو سره په پښین کې انګلیسي افسر واټرفیلډ ته تسلیم کړ. د نوموړي انګلیسي افسر له خوا ورسره نرم چلند وسو او د ده په خوښه یې د کراچې ښار ته د استوګنې له پاره په رېل کې واستاوه او د میاشتې یې شپږ سوه کلداري معاش ورته وټاکه. ده په کراچۍ کې له خپل تربور سردار شېرعلیخان قندهاري سره یو ځای درې کاله تېر کړل. په دې درېو کلونو کې یې ځان پخپلو ادبي سرګرمیو او لیکنو بوخت ساتلی و. په یوه لیک کې چې د سردار محمد آصف خان او سردار محمد یوسف خان په نامه یې کښلی دئ، لیکي: "... بهر صورت طرزی محزون هم در بیشهٔ کراچی گرجی نشستگان بیکار نه نشسته ... گاهی لالی متلالای لوء لوء لالا رابجای آویزهٔ گوشوار ازبن گوش شاهدان مضامین رنگین آویزد، لحظهٔ جواهر زواهرومروارید غلطان آبدار شهوارتجنیس را برای ترصیع گلو بند کردن نوعروسان عبارات شیرین از دهان صدف گوهرخیز خامه فرو ریزد..."[۵] په دې موده کې یې د هندوستان زیاترو ښارو، بمبئي، حیدرآباد، دکن،

---

[۳] جنبش مشروطیت در افغانستان، ۱۰۹مخ.

[۴] سردار غلام محمد خان د کندهار په بندیخانه کې د امیر عبدالرحمن په تعریف کې یوه اوږده قصیده ویلې ده، چې دوشپېته بیته لري او مطلع یې داسې ده :

هلال عید چو شد جلوه گر زچرخ دو رنگ
افق شـد از گل سـیاره پردهٔ ارژنگ

وګ دېوان طرزی افغان، ۱۳۹مخ

[۵] دیوان، ۷۰۱ مخ.

بنګلور، میسور، مدراس، احمدآباد، ګجرات، اجمیر، اکبرآباد، ډهلي، سرهند، امرتسر، پنډۍ، پېښور او نورو ته سفرونه وکړل او په پای کي ورته په هند کي استوګنه او هغه هم له خپل سیاسي او عقیدتي حریف تربور سردار شېرعلیخان سره یو ځای ژوند کول سخت تمام سول. محمود طرزي لیکي چي په هندوستان کي یې "بعد ازین سیاحت ششماهه به مرأت قلب نورانی شان که متجلی از انوار رحمانی بود از زنګ ظلمت تیره روان دولت کافر ننګ و اباء نموده نخواستند که این عمر آخر در تحت حمایت و معاش اهل کفر بسر برند. لاجرم در صدد آن شدند که از هند هجرت نموده بدولت عثمانی پناه آرند[٦]".

تر دې وروسته د انګرېزي حکامو په اجازه د خپلي کورنۍ له ټولو غړو سره، چي زلمی محمود طرزي هم پکښې و، په کال ۱۳۰۲ هـ ق = ۱۸۸۵ع کي له کراچي ښخه مخ پر بغداد روان سو. شېر میاشتي یې په بغداد کي تېري کړې او وروسته یې د عراق د والي په سپارښتنه خپله کورنۍ په بغداد کي پرېښووله او خپل مشر زوی محمود طرزي یې د سفر د ملګري او ترجمان په توګه له ځان سره ملګری کړ او د عثماني ترکیې پایتخت استانبول ته یې د سلطان عبدالحمید غازي دربار ته ځان ورساوه. سلطان ته یې درنې قصیدې وویلې او د هغه له خوا ورته د میاشتي دوه زره قرشه تنخواه مقرره او په سوریه (شام) کي د استوګني له پاره یوه اندازه مځکه ورکول سوه. په دغه وخت کي عثماني دربار ورته د (مهمان خاص شاهانه) لقب ورکړی و[۷]. د سردار غلام محمدخان طرزي پر ویزیت کارت باندي، چي په بیروت کي یې ځان ته چاپ کړی و، داسي لیکل سوي وه : مهمان خاص حضرت شهریاری، برادر زادهٔ امیر اسبق افغانستان مرحوم دوست محمدخان، سردار غلام محمد خان طرزی مقیم شام شریف[۸]. سردار غلام محمدخان طرزي دوې میاشتي د دولت د مېلمه په توګه په استانبول

---

[٦] دیوان طرزی افغان، ۹مخ.

[۷] وګ : محمود طرزي، سیاحتنامهٔ سه قطعهٔ روی زمین در ۲۹ روز، ۱۲مخ.

[۸] وګ : هماغه اثر ۲۰۷مخ. زما د معلوماتو له مخي د یوه افغاني تبعه له پاره به دا لومړنی ویزیت کارت وي.

کي تېري کړې او وروسته سوریې ته ستون سو. خپل زوی محمود طرزي یې په کورنۍ پسې بغداد ته ولېږه او څه موده وروسته یې کورنۍ هم ورسره یو ځای سوه. په ۱۳۰۳ هـ ق =۱۸۸٦ع کال یې یو وار بیا استانبول ته سفر وکړ او د سلطان عبدالحمید له خوا ونازول سو. د۱۳۰۴هـ ق = ۱۸۸۷ع کال په پای کي یې د حج سفر وکړ او د بیت الله شریف په زیارت مشرف سو. د حج فریضې تر ادا کولو وروسته بیرته سوریې ته ولاړ او په ۱۳۰٦هـ ق = ۱۸۸۹ع کال یې د (اخلاق حمیدیه) په نامه یو کتاب وکیښ او د خپل زوی محمود بیګ په لاس یې د عثماني ترکیې سلطان خلیفة المسلمین سلطان عبدالحمید ته واستاوه، چي د سلطان له خوا وستایل سو او یو زر قرشه یې د ده د تنخواه ضمیمه کړه او ۲۰۰۰ قرشه یې د محمود بیګ د سفرخرڅ په نامه ورکړل[۹].

سردار غلام محمدخان طرزي د ۱۳۱۸هـ ق کال د برات پر پنځلسمه د پنجشنبې په ورځ (۲۸ دسمبر ۱۹۰۰ع) د سوریې په پایتخت دمشق کي مړ او هورې ښخ سو.

زوی یې محمود طرزي د ده پر مرګ باندي اوږده مرثیه ویلې وه، چي له بده مرغه ضایع سوې او یوه کوچنوټې برخه یې په "پراګنده" کي خپره سوې ده، چي بیان به یې د محمود طرزي د آثارو په برخه کي ولولئ. یو څو بیته یې دا دي:

بعد از ثنا و حمد خداوند لایزال
گویم ترا ز قصه احوال پر ملال
چرخ فلک بما سر نیرنگ کرد باز
محروم ساخت دیده ز دیدار دلنواز
یعنی که بُد مرا پدری مهرپروری
مشفق بُد و رحیم بُد و لطف گستری
هم شاعر و ادیب و حکیم و دبیر بود
اندر وطن وزیر بُد و یا امیر بود

...........

---

(۹) دیوان طرزي افغان، ۷۰۸ مخ.

در لیله برات وشب جـــمعه از ســنین
بُد یکهزار وسه صدو هجده که شد قرین
با رحمت اله رحیم وکـــــریم خــویش
رفت از جـهان بسوی جـنان نعیم خویش

سردار غلام محمدخان طرزي پر خپل هیواد مین سړی و. د پردیو له خوا یې هیڅ راز سپکاوی، حتی د خپلو دښمنانو امیرانو سپکاوی یې لا پر زړه نه سوای اوارولای. دی له وطن څخه په داسي مات زړه وتلی و، چي وروسته یې د ستنېدلو خیال بیخي له ذهنه ایستلی و. ده د عثماني دولت له ناظر عدلیه جودت پاشا سره د خبرو په ترڅ کي ویلي وه، چي "... مخلص شما... از ملک خود هم بصورتی نه برآمده ام که باز خیال رجعت آنرا داشته باشم[۱۰]". سره له دې چي امیر عبدالرحمان خان له ده سره ډېره ناوړه رویه کړې وه خو ده چي به کله له بهرنیانو سره په خبرو کي د افغاني ټولني د سیاست او دربار په باب د خبرو اړتیا احساس کړه، نو به یې ټل هڅه کوله چي د افغاني امیرانو حیثیت ته صدمه ونه رسېږي. ده د عثماني دولت له صدراعظم جواد پاشا سره په استانبول کي خبري کولې او د هغو په ترڅ کي جواد پاشا ورڅخه وپوښتل، چي امیر عبدالرحمن خان ولي دومره ناپوهي وکړه چي خپل خپلوان او دوستان یې له خپلو کورنیو سره یو ځای له وطنه وشړل او ولي یې د هغوی له تجربې او پوهي څخه کار وانه خیست؟ ده ته لکه چي د یوه افغاني امیر په باب د ناپوهۍ کلمې خوند ورنه کړ او پر ټولو هغو ناځوانیو یې ګام کښېښو، چي د همدغه امیر له خوا ورسره سوي وې او په جواب کي یې ورته وویل: "حقیقت اینست که من برای شما بیان میکنم: اولاً اینرا باید دانست که حضرت امیر ما درینخصوص سراسر حق بدست داشت. زیرا هنگامیکه حکومت مستقلهٔ افغانستان مضمحل شده دولت انگلیز افغانستانرا ضبط و استیلا نمود رؤسا و بزرگان اقوام افغانیه بر دو فرقه شدند که بعضی از انها طرفداری انگلیزها را پیشه گرفته بوطن و ملت خود غدر و خیانت نمودند، و بعضی برضد آنها حرکت کرده با دشمن وطن بمحاربه ومقاتله قیام ورزیدند. و بعد ازانکه حضرت امیر عبدالرحمان

[۱۰] وګ: سیاحتنامه، ۲۲۸ مخ.

خان وطن را از چنگال اجنبی رهایی داده اعلان استقلال امارت افغانستان را نمود گروهی را که طرفداری انگلیزها را کرده غدر و خیانت شان بوطن و ملت ثابت شده بود بسبب این خیانت پر جنایت شان فرار ساخت، و گروهی که بعکس آن بود بسببی که هر یک خود را فاتح یگانهٔ افغانستان میشمردند، و در هر اجراآت حضرت امیر بکبر و نخوت مغرورانهٔ خود مانع می آمدند ازانرو بجز فرار ساختن آنها دگر چارهٔ نبود. و هم چه حاجت! دولت علیهٔ شما که ششصد ساله یکدولت پرقوت و با شوکت عظیم الشانی میباشد درینوقت حاضر در پیش چشم خود می بینیم که برادر بزرگتر شان محبوس و اکثر شهزاده گان خاندان سلطنت سنیهٔ شان مأسور هستند که اینگونه کارها از امور طبیعی دولت ها دیده میشود[۱۱]". محمود طرزي ليکي چي د حضرت طرزي افغان دې جواب، چي د سلطان عبدالحميد خان سياست ته يې صدمه رسوله، جواد پاشا دومره واسرنگی (تلولی) کړ، چي سم د لاسه يې موضوع بلي خوا ته واړوله او مجلس يې پای ته ورساوه.

سردار غلام محمدخان طرزي د ژوند ډېري سړې او تودې ليدلي وې. که امير عبدالرحمن خان له خپلي کورنۍ سره په ډېره دردوونکې توګه له وطنه وشاړه، خو امير شېرعليخان بيا له عبدالرحمن خان سره د دوستۍ په تور په کابل کي زندان ته واچاوه. طرزي افغان په دغه زندان کي ډېر غمګين اشعار ويلي دي، چي لاندي به يې ولولئ:

جـــهانی در تماشای چـــراغـان عیشـها دارد
دلـــــم در کـــنج زندان نالهٔ زنجـیرسـا دارد

دلـم در کـــنج زنـدان روی آسـایش نمی بیند
نظـر در خـــــانهٔ تاریک بینائی کجـــا دارد
زبس در کنج غم بشکـست اجزای وجـود من
تنم چـــون حلقهٔ زنجـیر سرتا پا صـدا دارد
درون بزم زندان هـــر طـرف در پیش روی من
بکف آئینه از شـــمشیر، بهر روی مـــا دارد

---

[۱۱] وګ: سياحتنامه، ۲۴۷–۲۴۸ مخونه.

زبس نیش جفای خار طبعان میخورد بر دل
نفس در سینهٔ تنگم خسک در زیرپا دارد
ازان چون سایه از پهلو بپهلو هم نمیرد کم
که پای رفتنم را دست قدرت در حنا دارد
شدم تابستهٔ زنجیر از غم کرد خو کردم
زمینگیری مرا سرگشته همچون آسیا دارد
زبس در شعلهٔ درد گرفتاری دلم سوزد
دلم چون اخگر سوزنده آتش زیر پا دارد
خدا را غیر آزادی ندارم مطلبی دیگر
بلی هر کس درین عالم بدل یک مدعا دارد
سپهر کینه جو از بس کمان کین کشد بر من
دلم را چاک چاک از تیر بیداد جفا دارد
نه بیند روی جمعیت بحق سینهٔ پاکان
مرا هر کس جدا از پیش یار و آشنا دارد
ز درد و دلخراش دل چه داری شکوهٔ بیجا
دری صبر و تحمل زن که هر دردی دوا دارد
مگو ای دل که در تدبیر خود کردی خطا طرزی
خطا کرد آنکه تقدیر ازل گوید خطا دارد

## سردار غلام محمدخان طرزي او سيد جمال الدين افغاني :

سردار غلام محمد طرزي له سيد جمال الدين افغاني سره هم پېژندل او هم يې فوق العاده درناوی ورته درلود. د همدې درناوي نتيجه وه، چې خپل زوی محمود طرزي يې له خپل يوه ليک سره استانبول ته د ده ليدو ته ورواستاوه او تاسي به يې بشپړ بيان د محمود طرزي په برخه کي ولولئ. سردار طرزي افغان سيد جمال الدين ته دوې قصيدې ويلي دي، چې دلته به پر وړغېږو:

نسیم صبح در گلشن وزید از جانب صحرا
عبیر آمیز و عنبر بیز و روح انگیز و روح افزا
طراوت بخش روی گل پریشان ساز بوی گل
موافق همچو خوی گل بطبع مردم دانا

چو بوی لالــه جان پرور چو عطر گل روان پرور[12]
دمـــادم گلستان پرور سراسر بوستان پیرا
حبیب ویـــاور گلشن رقیب و رهـبر گلـشن
خطیب مـــنبر گلشن حسیب دفتر صـحرا
ازو طـبع چـــمن تازه وزو بر روی گل غـازه
ازو در گلشن آوازه و زو در بــوستان غــوغا
بطفل غــنچه او دایه بچنگ لالـــه او مـایه
بــفرق زاغ او ســـایه بدوش باغ او کالا
بسوری رنگ وآب ازوی بسنبل پیچ وتاب ازوی
شده سرمست خواب از وی دو چشم نرگس شهلا
بطرف باغ کوشیده بگل چـون رنگ جوشـیده[13]
بقد شـــاخ پـوشـیده زغنـچه دیبهٔ دیبا[14]
رخ چون گل عـــرق کرده جواهر در طـبق کـرده
قبای غنـچه شق کـــرده چو جیب لالهٔ حـمرا
بشاخ سرو و تخت گل نشـسته قـمری و بلـبل
یکی در شـیون و غلـغل یکی در ناله و آوا[15]
رخ گل در بـهارستان بدانسان کرده کارستان
که مانی در نگارسـتان زنــقش دلکش زیبا
بجسم لالهٔ نــعمان چنان از لطف بخـشد جان
که بر طـبع خـــردمندان کلام نغز مـولانا
جـمال الدین نام آور سخن فـهم و سـخن پرور
خـردمند هنر گسـتر فلک قدری ملک سیما
فلاطون از غـم رویش کـند تب لرزه در کـویش
اشـارات دو ابرویش شـــفای بوعلی سـینا

---

[12] دیوان : چو بوی گل روان پرور.
[13] غبار : به گل چون زنگ جوشیده
[14] غبار : زغنچه دیبهٔ زیبا
[15] غبار : یکی در چهچه و آوا

ترا طرزی ثنا گوید هزاران مرحبا گوید
بصدق دل دعا گوید چه در سرا چه در ضرا
تویی عالم تو یی عامل تو یی عارف تو یی کامل
تو یی فاضل تو یی باذل تو یی عاقل تو یی دانا
فصاحت را تو سحبانی بلاغت را تو حسانی
عرب را شیرهٔ جانی عجم را دیدهٔ بینا
توئی کشف نکوکاری توئی برهان دینداری
تو ئی فرهنگ هوشیاری تو ئی قاموس استغنا
تو ئی بر سالکان رهبر توئی بر کاملان مهتر
توئی بر سروران سرور تو ئی بر خواجه گان مولا
تو شمع بزم ایقانی دلیل راه ایمانی
تو اندر بحر عرفانی درخشان گوهر والا
کدامین قطره آبستی که رشک دُر نابستی
نکوتر ز افتاب هستی چه باشد لوءلوءلالا
نه ماه مصر و شامستی که خورشید تمامستی[16]
قبول خاص و عامستی بجا بلقا و جا بلسا
چه نسبت بابشر داری که صد گیتی هنر داری
چهادر زیر سر داری که سرها داری اندرپا
تو نور افغانستان اخگر تو عود افغانستان مجمر
تو جان افغانستان پیکر تو روح افغانستان اعضا[(17)]
الا تا نوبهار آید درخت گل ببار آید
زخاک مرغزار آید شمیم عنبر سارا
بهار خاطرت خرم مبرا از خزان غم
چو بوی نافه مشکین دم چو بوی غنچه روح افزا
د ارواښاد غبار په ثبت کې دا بیت په پای کې راغلی دئ :

---

[16] غبار : کدامین قطره آبستیکه رشک درنابستی
[(17)] دیوان : تو نور استی جهان اخگر تو عودستی جهان مجمر
تو جانستی جهان پیکر تو روحستی جهان اعضا

نه ماه مصر و شام استی که خورشید تمام استی
تو افـــــغان را نظام استی زرای روشن والا

د سردار غلام محمدخان طرزي په دېوان کي د قصيدې د عنوان برخه لږ څه وراني لري او هغه دا چي د قصيدې د ممدوح نوم (سيد جلال الدين) ليکل سوی دئ، ځکه نو ارواښاد پوهاند ډاکټر جاويد په بهر کي په يوه افغاني جريده کي د دې قصيدې د ممدوح په باب شک ښودلی دئ. زما په نظر څرنګه چي د علامه سيد د ژوند د زماني په شاوخوا کي موږ د "سيدجلال الدين" په نامه داسي شخص، چي په دومره اوصافو دي ستايل سوی وي، نه پېژنو او نه هم ارواښاد پوهاند دوکتور جاويد په دې برخه کي نور تفصيلات ورکړي دي ځکه نو زه د (سيد جمال الدين) پر ځای (سيد جلال الدين) د کاتب تېروتنه بولم. د (علامه سيدجمال الدين افغانی در آيينهٔ مطبوعات) په ۳۹ مخ کي د مرحوم مولانا خال محمد خسته د (يادی ازرفته گان، ۱۷۰ مخ) په حواله د نوموړي غلام محمد خان طرزي د يوې بلي قصيدې خبره سوې ده او ما (هوتک) د طرزی د کلياتو د قصايدو د برخي په ۷۱ مخ کي کتلې ده، چي په دې بيت شروع کيږي :

خيال روی تو گر بگذرد مرا به ضمير
دمـد زهر بن مـــويم هزار بدر منير

په دېوان کي د دغي قصيدې، چي بشپړ متن به يې تاسي وروسته ولولئ، ممدوح هم (سيد جلال الدين) ليکل سوی دئ. مرحوم خسته د دې قصيدې عنوان (مخاطبه با حضرت سيد جمال الدين افغان) راوړی دئ[۱۸]. که دا د کاتب تېروتنه نه وای نو د مولانا خسته غوندي فاضل محقق بِه ضرور لږ شانته اشاره قدر ورته کړې وای.

په ديوان کي د لومړۍ قصيدې سرليک داسي دئ : قصيده در مدح سيد جلال الدين که از روم آمده بود، فرموده. د سيد جلال الدين په نامه کي د تېروتني دلايل تاسي وړاندي ولوستل خو دا چي وايي "که از روم آمده بود" په لږ څه نوره څېړنه ارزي. په وروستيو ليکنو کي داسي ښوول کېږي

---

[۱۸] ستوده محمدابراهيم و پهوال عبدالرحمن، علامه سيد جمال الدين افغانی در آيينهٔ مطبوعات، ۳۹ مخ، د کابل پوهنتون چاپ، ۱۹۷۷ ع.

چې سردار غلام محمد خان دغه قصیده استانبول ته د خپل زوی محمود طرزي د استولو پر وخت ویلې وه[۱۹]. ما ته د قصیدې له سرلیک څخه داسې ښکاري چې دا قصیده په کابل یا هرات کې هغه وخت ویل سوې ده، چې سید جمال الدین هم دغه ښار ته ورغلی و. موږ ته معلومه ده چې د سید جمال الدین پلار سید صفدر د امیر دوست محمد خان په پاچهي کې کابل ته غوښتل سوی و. سید افغاني له خپل پلار سره یو ځای په کابل کې د ادبیاتو، عربي ژبې او شرعي علومو تحصیل وکړ. په اتلس کلنۍ کې یې د سفر اراده وکړه او هند ته ولاړ. په هند کې یې تر یو کال و څو میاشتو وروسته د عربې هیوادو د سفر عزم وکړ او مکې مکرمې ته ولاړ. سید د امیر دوست محمد خان د پاچهۍ په پای کې افغانستان ته ستون سو او وایي چې د امیر دوست محمدخان له خوا د هرات د کلا بندۍ په وخت کې (۱۸٦۳ع) له دغه امیر سره حاضر و[۲۰]. سردار غلام محمد خان طرزي هم د خپل اکا امیر دوست محمدخان په لښکر کې د هرات په کلابندي کې حاضر و، چې تاسې یې بیان د همدې لیکني په نورو برخو کې ولوستی. زه ګومان کوم چې د سیدجمال الدین افغان او سردار غلام محمدخان طرزي پېژندګلوي په همدې وختونو کې سره سوې ده. سید جمال الدین افغان د امیر محمد اعظم خان (۱۸٦٦ – ۱۸٦۸ع) په پاچهي کې لا په کابل کې و او د دغه امیر له خوا یې زیات قدر کېدی، خو د امیر شېرعلیخان د دوهم وار پاچهۍ په سر کې له افغانستان څخه بیرته ووت.

سردار غلام محمد خان طرزي خپله دغه غرا قصیده تر ۱۸٦۳ع کال وړاندي په هیواد کې دننه ویلې ده.

سردار غلام محمدخان طرزي یوه بله مخاطبه لري، چې هغه یې هم له سیدجمال الدین سره په غیاب کې کړې ده. دی وایي : ستا خیال چې مې هر وخت په ذهن کې راوګرزي، د بدن تر هر وربښته مې د سپیني سپوږمۍ په شان روڼاوي راووزي. د قصیدې له متن څخه ښکاري چې له افغانستان

---

[۱۹] وګ : علامه محمود طرزی، شاه امان الله و روحانیت متنفذ، ۱۷مخ.
[۲۰] حکیم مشرق، د قدری قلعچی تالیف، د عبدالواحد نهضت فراهی ترجمه (فارسي)، ۳۲ – ۳۳ مخونه.

ځخه د سيدجمال الدين تر وتلو وروسته ويل سوې ده.

علامه حبيبي ليکي چي سيد جمال الدين د هرات تر فتحي وروسته د امير شېرعليخان د جلوس په مراسمو کي برخه اخيستې وه. (وګ : نسب و زادګاه... ٦٥ مخ).

## مخاطبه با سيدجمال الدين[۲۱] دراعطاو منع

خيال روی تو گـــر بگذرد مرا بضمير
دمد زهربن مـــــويم شرار بدر منير
ببزم وصـل زرويت نـــظر نمی گسلم
زروی ناز بچشـــم اگــــر زنی باتير
بياد آن دهن از مـــن مـپرس حال دلـم
بسان غنچه بگلشن نشسته ام دلــگير
مـــــرا بخدمت سرکار سيد العــلما
دو نکته ايست اگـر بشنوی کنم تقرير
الخ[۲۲]

سردار غلام محمدخان طرزي د کندهاري سردارانو په کورنۍ کي سخاوت، ذکاوت، ميړاني، اخلاق، علم او ادب کي تر ټولو نورو شهزاده ګانو وړاندي و. په تېره بيا د شعر او ادب په برخه يې برلاسي د ده د دېوان له لوستلو ځخه پوره ځرګندېدلای سي. د علم و فضل اوازه يې په ژوند کي لا هم د هندوستان، ايران، عراق او ترکستان ښارو ته رسېدلې وه. د ده د اشعارو ضخيم دېوان په ۱۳۰۹هـ ق = ۱۸۹۱ع کال په کراچي کي چاپ سوی دئ. د خطاطۍ کار يې د نومړي زوی سردار محمدزمان خان سر ته رسولی او دېوان د ده د وراره سردار محمدانور خان په اهتمام د چاپ ګېڼه اغوستې ده. وايي چي دغه دېوان د ښاغلي ننګيالي طرزي په پاملرنه او مالي لګښت په ۱۳۸۲ ش کال په ايران کي بيا چاپ سوی دئ. علامه رشاد رحمة الله عليه د سردار غلام محمدخان طرزي د نورو آثارو يادونه هم کوي او وايي چي د

---

[۲۱] په ديوان کي کاتب سهواً (سيد جلال الدين) کښلی دئ.

[۲۲] ديوان، د قصايدو برخه، ۷۰ مخ. د سردار غلامحمد خان طرزي په باب ليکنه د ده د دېوان د لومړي چاپ له سريزي او نورو ماخذو ځخه ترتيب سوې ده.

(وقوعات سته) یا (تحفهٔ شامي) په نامه يې يو اثر د کابل په ملي آرشيف کي خوندي دئ. دا اثر يې په ۱۳۰۹هـ ق کال کښلی او خطاط يې شیرمحمد نیکورقم نومېږي. دغه راز يې د تاشکند په دولتي کتب خانه کي د سردار غلام محمد خان په لاس د یوه لیکل سوي بیاض یادونه هم کړې ده، چي په هغه کي "د ابوالمعاني بیدل، صائب تبریزي، نورالعین واقف، حکیم همداني، ناصرعلی سرهندي، کمال الدین مسعود، خجندي او سعدي شیرازي د اشعارو منتخبات راټول کړل سوي دي". علامه مرحوم زیاتوي چي سردار غلام محمدخان طرزي ښه خطاط او میناتور و[۲۳]. علامه محمود طرزي د خپل پلار په آثارو کي د (طرز طرزی) په نامه د یوه اثر یادونه کوي او وايي چي په شام کي د دغه اثر یوه نسخه د ده له پلار سره وه چي د میرزا غلام حسین په قلم خطاطي سوې وه[۲۴].

د فارسی ژبي مقتدر شاعر میرزا احمدعلیخان[۲۵] د سردار غلام محمد خان طرزي په باب یوه مدحیه قصیده لري، چي دلته به يې په ګډه ولولو:

فرید عصر و زمــــان خسرو بلند مکان.
یگانه داور دوران غـــــلام محـــمد خان
بدل قـــوی و بکف باذل و بدست جـــواد
بعقل پیر و بجان کامـــل و ببخت جـــوان
بذهن هندسه خـوان و بفهم حکـمت خوان
بطـبع مـــوی شگاف و بنطق عــذب بیان
بعلم و فـــــضل و بلاغت مســلم آفاق
برتبه فخر جمـیع طـــــوائف افــغان
بطرز شعر چو از شاعـــران ربوده عـنان
درانشده متخلـص بـــــطرزی افـــغان

---

[۲۳] میوند مجله، ۲ کال، ۳ ګڼه ۳۱ مخ.
[۲۴] وګ: سیاحتنامه، ۵۷۹ مخ.
[۲۵] میرزا احمدعلیخان د امیر عبدالرحمان خان په وخت کي په کونړ کي د (سررشته داری) منصب درلود. علامه حبیبي يې د (مرد اداری قلمدستی) په صفت یاد وي. (وګ: نسب و زادگاه ... ۷۸ – ۷۹ مخونه).

بلی کلام ملوکست چون ملوک کلام
ربوده زان زمیان گوی سبقت از میدان
برزم و بزم ازو با نظام سیف و قلم
به رای وحرم ازو با دوام شوکت و شان
ولی نعمت عصر او حاتم دهرا
بابر نسبت دستت دهم زهی بهتان
که ابر قطرهٔ آبی دهد ولی گرید
گفت چو بحر درر ریزد وتوئی خندان
بچشم عقل و خرد قندهار چون جسدیست
تو از کمال و هنر در جسد شدی چون جان
درین زمان که بود قحط جود در عالم
عجائب است مرا از غرائب دوران
که گر شهنشه غزنین به پیر فردوسی
نموده وعده به بیتی یک اشرفی احسان
توآن شهی که بدادی درین قصیده مرا
صد اشرفی صله ناکرده وعدهٔ احسان
همیشه تا بود از نثر معتبر دفتر
مدام تا بود از نظم منتظم دیوان
بود بمدح تو مشحون دفاتر ایام
بود بمدح تو (احمد) همیشه مدحت خوان

سردار غلام محمدخان له خپل زوی محمود طرزي سره په فارسي خبري کولې. محمود طرزي ليکي چي استانبول ته د سفر په لار کي يوه فرانسوي مور، ته په ځير ځير کتل ځکه چي "قيافهٔ افغانيهٔ حضرت پدر، قيافت ترکی من وشيوهٔ تکلم لسان فارسی ما نظر و سمع او راجلب کرده بود[۲۶]". خو کله کله چي به يې نه غوښتل د مجلس ناست کسان د دوی په خبرو پوه سي، نو به يې په پښتو خبري کولې[(۲۷)].

[۲۶] وګ : سياحتنامه، ۱۱۳مخ.
[(۲۷)] وګ : د همدې سياحتنامې ۲۰۵ او ۲۲۰ مخونه.

بعون عنایت خالق کون و مکان در زمان سعادت اقتران




بسعی و اهتمام محمد انور خان تحریر یافت الراقم محمد زمان

د سردار غلام محمد خان طرزي د دیوان لومړی مخ

سردار غلام محمدخان طرزي پر ادبي صنايعو باندي دونه برلاسی و، چي ساری يې پخپل وخت کي ډېر کم موندل کېدی. ادبي صنايع د هغه وخت په ادبي ښېګڼو کي شمېرل کېدل.

د ده په دېوان کي د (رقطا) په صنعت کي د نظم او نثر يوه ټوټه سته، چي په رشتيا سره يې بايد د شاعر په کمالاتو کي وشمېرو. رقطا هغه ادبي صنعت دئ، چي شاعر په نثر يا نظم يو توری منقوط (ټکی لرونکی) او بل غيرمنقوط (بې ټکو) راوړی وي. د نثر مثال يې:

"اخوی من صبح ترنم بلبل باغ رنگ - بوبرقع نويد نسيم تمنای عشرت سير باغ از رخ چمن افگند. قلب کبوتر شهپر غازان مثل باز صبح پريد. شهباز عقاب طغان اباقاخان اتابک خديو زاغان وی منهزم شد. پس توخون می از لب سبوبکشاي از لب اياغ مي عناب رنگ خمخانۀ کش. کی کنم توبه زمی[۲۸]".

د نظم مثال:

چون کنم باغم تو توبه زمی
خون می از لب سبو بکشا
ايصنم برفگن حجاب از رخ
چمنستان رنگ بو بکشا
بر خم باش گير پای سبو
می عناب رنگ زو بکشا
باخم زلف مشکو جانم
بسته شد زلف مشکبو بکشا
(ديوان ۶۹۲ مخ)

يو ليک يې په کابل کي د جانان صاحبزاده مجددی قدس سره په نامه په دوه حرفي صنعت کي کښلی و: "جانانم جانم قربانت حامل نامۀ کاغذ جانانم بدست من حريف ظريف برساند ... الخ". په ټول ليک کي دوه

[۲۸] دېوان ۶۹۲ مخ. په دې مثال کي د (ی) توری په ټکي لرونکو تورو کي شمېرل سوی دئ او دليل به غالباً دا وي، چي دا توری که د کلمې په منځ کي راسي، نو بيا ټکي غواړي.

حرفي کلمې استعمال سوي دي[۲۹].

په بل ځای کې ټول لیک په درې حرفي او څلور حرفي کلمو کښلی دئ.

داسي چي د لیک لومړۍ کلمه څلور حرفي او ورپسې درې حرفي وي دا صنعت ډېر سخت دئ او ما یې کوم بل ځای مثالونه نه دي لیدلي :

"مشفق سخن‌فهمم. محنت منع سیر گلشن طبع محبت شیم شیشه صفت صهبا غصهٔ کلفت بسر کشیده ... الخ".

د تاریخي قطعو په ویلو کي خو یې مهارت بالکل ځرګند و او ما یې د اشخاصو د زېږېدني او مړيني ډېري تاریخي قطعې په همدې کتاب کي را اخیستي دي. د ده په باب به خپلو خبرو ته د هغي تاریخي قطعې په راوړلو سره د پای ټکی کښېږدم، چي په استانبول کي یې د سلطان حمید خان غازي د مسجد جامع د ودانولو پر وخت ویلې وه :

بنای مسجد سلطان زعقل طرزی جست
بخنده گفت که تاریخی زین زیاده مجوی
زاحتساب برآری چو بی نمازانرا
بنای مسجد عبد الحمیدی غازی گوی

(دیوان ۱۷۴مخ)

دا تاریخي قطعه اروانښاد محمود طرزي پخپله سیاحتنامه ۳۴٦مخ کي داسي ثبت کړې ده :

بنای مسجد سلطان زعقل (طرزی) جست
بخنده گفت که تاریخی زین زیاده مجوی
زاحتساب برآری چو (بی نمازان) را
(اساس مسجدی سلطان حمیدی غازی گوی)

حل : د سلطان عبدالحمید د جامع د ودانولو کال د محمود طرزي په سیاحتنامه ۳۴٦مخ کي ۱۳۰۳هـ ق ښوول سوی دئ او زیاته کړې یې ده، چي دا قطعه یې پخپل ښکلي خط باندي د حاجي علی بیګ پر لاس سلطان عبدالحمید خان-ته ورسول او د هغه له خوا ډېره وستایله سوه. محمود طرزي تر رباعي لاندي ورته کښلي دي "عدد بی نمازان چون از عدد مصرع

[۲۹] دیوان، ٦۹۲مخ.

ثاني بر اید تاریخ مسجد حاصل میشود". لکه تاسي چي ورانديي ولوستله د دې رباعي دواړه ثبتونه زما د محاسبې له مخي ۱۳۰۳ هـ ق کال نه پوره کوي. باید حل یې پیدا سي[۳۰].

د دې بحث په پای کي به د سردار غلام محمدخان طرزي د هغو فارسي غزلو څو څو نمونې رانقل کړو:

د میرزا عبدالقادر بیدل په پیروي کي:

بگلشن چـون زشوخی آن چـمن پرواز می آید
چـــو بلبل گل ببال غنـچه در پرواز می آید
زشرمش رنگ و بوی گل بپهلو میخورد هر دم
که در گوش از شکست رنگ و گل آواز می آید
زرفت و آمد ذوق تـــماشـائیم چه میپرسی
باستقبالش از خـــود رفتـن من باز می آید
چو چشم او اشـــارت کرد سویم با سر مژگان
بشارت ســوی دل بر دم که اینک باز می آید
بروی رنگ گل نگهت چـو شبنم آب میـگردد
مـگر سوی گلستـان آن بـــهار ناز می آید
پری در شیشه چون می میخرد از دیدهٔ مستـان
گـــر از شوخی ببزم مـا باین انداز می آید
ز مـــرغ دل نیم واقف ولی باز اینـقدر دانم
کـه از بال پرشـــاهین بگـوش آواز می آید
بطرف گلشن از باغ عـــدم بر دامن گلـچین
بذوق دیدن او دیـــده چشـم باز می آید
مگر (طرزی) چـو بیدل ذوق گـرد پای او دارم
که مشت خاک من چون چشم در پرواز می آید
(دیوان ۳٦۵مخ)

---

[۳۰] په دغه تاریخي جامع کي د نړۍ د کاتولیکانو مشر پاپ (Pope Benedict XVI) د ۲۰۰٦ ع کال د نومبر پر ۳۰مه ؟ لمونځ وکړ. ما (هوتک) د ۱۳۵۲ ش کال په دوبي کي یوه بشپړه اوونۍ په دغه جامع کي تېره کړې ده.

جناب طرزي له زماني څخه په فرياد دئ، چي وايي :

ازین زمانۀ پُر فتنه جای فریاد است
که هر که هر چه کند در محلِ ایراد است
اگر نماز کنی گویدت که صوفی شد
و گر قمار کنی گویدت که نراد است
به بتکده چو روی گویدت که کافر شد
بصومعه چو روی گویدت که شیاد است
بدست سبحه چو گیری بیکدگر گویند
که سبحه نیست به ره دام و دانه بنهاد است
چو با سلام روی گویدت که طامع شد
چو بی سلام روی گویدت که شداد است
چو بخششی نکنی بر کسی همی گوید
که این خسیس عجب داد ممسکی داد است
چو خلعتش بدهی از منافقت صد جا
سحر بخنده بگوید که دست برباد است
چو کهنه پوش شوی از قفا همی گوید
که این حریف نگر سخت تر زفولاد است
چو پوشی اطلس و دیبا و پرنیان و سمور
بطعن و مضحکه گوید که مسرف افتاد است
خوش آنکسی که زرد و قبول خلق جهان
بسان (طرزی افغان) بکلی آزاد است
(دیوان ۱۴۴مخ)

د قاضي طلامحمدپېښوري[۳۱] دهجوي په راوړلوسره به د جناب

---

[۳۱] مير غلام محمد غبار ليکي، چي قاضي طلامحمدپېښوری د قاضي حسن زوی و. په پارسي ژبه يې شعر وايه او له سردار غلام محمدخان طرزي سره يې مکاتبه درلوده. کله چي سردار طرزي پېښور ته ولاړ او له قاضي سره يې وکتل، خوښ يې نه سو او پورتنی هجويه يې ورته وويله. قاضي طلامحمد د هغو قضاتو له ډلي څخه دئ، چي کورنی يې له احمدشاهي دورې څخه په پېښور کي مېشته وه او تل يې د افغانستان او د هند ←

طرزي بحث ته د پای ټکی کښېږدم.

قاضی طلا که نام طلا اصل او جس است
در زمـرهٔ کسان کس مضموم ناکس است
هـــر کس که دوستی نبرد با کسی بسر
از ناکسی میان کسان کمتر از خس است
آن نرنما که ماده بـــــر آمـــد بدوستی
هم ماده هم نر است همانا که گرگس است
رندان بتار پشم جُـل خـــــر نمیـخرند
از روی زر اگـــر چه معزز چو اطلس است
اهل کـــمال دین بدو عالـــم نمیدهند
دنیا بدین هر آنکه خرد گول و نارس است
طـــــرزی به بوتهٔ خردش چون گداختم
نی سرب و روی[۳۲] وآهن وارزي[۳۳] نی جس است
بگذر ازین طـــلا که نیرزد بخاک هـم
اوصاف ناکسان چکنی گفتگو بس است
(دیوان ۱۵۲مخ)

******

محمدولي ځلمی په خپل کتاب (د استبداد او مطلقیت په مقابل کي د ځینو افغانانو ملي مبارزې، ۲۴۲مخ) کي لیکي، چي احمد راتب د سردار غلام محمدخان طرزي له لمسیانوڅخه و؟ د پرچم ګوند د مرکزي کمیټې غړې اناهیتا راتبزاد د دغه احمد راتب لورده.

---

← د نیمي وچي په سیاست کي مرموز رول او په وروسته کي د انګلیسانو په ګټه رول لوبولی دئ. (د تفصیل له پاره وګورئ: افغانستان در مسیر تاریخ، ص ۴۵٦).
علامه حبیبي لیکي، چي "قاضي طلامحمد بن قاضي محمدحسن په پېښور کي لوی عالم او مؤلف او شاعر او خطاط و. دی د فارسي او عربي شعر دېوان لري او د سلوت التحریر او نفحة المسلک او تسلیه العقول مؤلف دئ". (وګ: پېښلیک ۱۸۳مخ).
[۳۲] روی = قلعی.
[۳۳] ارزیز = قلعی (غیاث).

## د سردار غلام محمد خان طرزي کورنۍ




* سردار غلام محمد خان طرزي شپږ ودونه کړي وه او يوولس زامن او شپږلوڼي يې پاته سوي دي.

# سردار محمد علم خان

سردار محمدعلم خان د سردار رحمدلخان زوی او د سردار غلام محمد خان طرزي مشر ورور و.

سردار کهندل خان چې مړ سو (سه شنبه ۷ ذی الحجه ۱۲۷۱ هـ ق = ۲۲ اګست ۱۸۵۵ع)، د ده د زامنو او سردار حمدل خان تر منځ د کندهار د واکمنۍ پر سر شخړي شروع سوې. تر یو لړ خونړیو جګړو وروسته یې له امیر دوست محمدخان څخه د مسئلې په حل کي مرسته وغوښته. امیر له دې موقع څخه استفاده وکړه او کندهار ته له لښکرو سره ورننووت او د کندهار اداره یې پخپل لاس کي ونیوله. سردار محمدعلم خان د امیر له دې وضعي څخه د نورو کندهاري سردارانو په شان ماښیجن و او پسه شا یې په امیر پسي خبري کولې. ربوټچیانو دا خبري د امیر تر غوږه ور ورسولې او امیرحکم وکړ، چې سردارمحمدعلم خان او د سردار محمد عظیم خان زوی سردار سلطان احمدخان (مشهور په سرکار) دې له کندهاره وایستل سي. نوموړو سردارانو د پارس قاجاري دولت ته پناه ورووړه. په دغه وخت کي د پارس قاجاري دولت په هرات کي تر ماتي وروسته له انګلیسانو سره د هرات پر سر یو تړون لاسلیک کړ (۴ مارچ ۱۸۵۷ ع)، چې د پارس د تړون په نامه یادېږي. تر دغه تړون وروسته یې سردار سلطان احمدخان د واکمن په توګه هرات ته واستاوه[1]. د تاریخ سلطاني مؤلف وایي چې په دغه حکومت کي یې سردار محمد علم خان، د کهندل خان زوی سردار سلطان علیخان او د وزیر یارمحمد خان زامن هم ور شریک کړل[2] او د دې پېښي نېټه یې د ۱۲۷۳ هـ ق کال د روژې د میاشتي وروستۍ ورځ = ۲۴ می

---

[1] هرات پښتانه، ستره لوبه، ۳۰۲ مخ.

[2] تاریخ سلطانی، ۲۹۰ مخ.

۱۸۵۷ ع ښوولې ده[۳]. سردار محمدعلم خان د سردار سلطان احمدخان په مشرۍ باندې راضي نه و، ځکه يې نو هرات ته له ورتګ څخه ټټه وکړه او مخ پر تهران رهي سو[۴]. تهران ته د تګ په حال کې د علامه رشاد رحمه‌الله له خولې په (اسهاک) نومي ځای کې د غلو په لاس شهيد سو[۵]. تاريخ سلطاني او سراج التواريخ د دغه ځای نوم (الهاک) ثبت کړی دئ[٦]. له امکانه ليرې نه ده چې د سردارمحمدعلم خان په مرګ کې دې د پارس د دولت لاس شامل وي. سردار غلام محمد خان طرزی د سردار محمدعلم خان وژل د ازبکانو له لاسه بولي او د ده پر مړينه يې يوه قصيده هم ويلې ده، چې وبه يې لولئ:

فغان که باز سپهر از جفا بکين آمد
کمان چرخ پی کينه از کمين آمد
سموم دهر بتاراج بوستان بوزيد
ز روزگار خزان بهر ياسمين آمد
جهان جود محمد علم که مرتبتش
برای غمزدگان ناصر و معين آمد
به پيش قامت او سرو پای در گل ماند
به پيش عارض او ماه خوشه چين آمد

---

(۳) سراج التواريخ د دې پېښې نېټه د ۱۲۷۳ هـ ق کال د شوال د مياشتې ۱۷ مه بللې ده (وګ : سراج ۲ / ۴۱ مخ).

(۴) سلطان احمدخان سرکار د سردار محمدعظيم زوی و، چې د امير دوست محمدخان وراره او زوم و. سردار محمدعظيم خان د امير دوست محمد خان ورور او د کشمير حاکم و. نوموړي سلطان احمد خان د ايران د تحت الحمايه په توګه پر هرات باندې واکمني چلوله. امير دوست محمدخان په ۱۲۷۹ هـ ق کال هرات تر يو کال کلابندۍ وروسته ونيو او سلطان احمدخان د همدې کلابندۍ په وخت کې مړ سو (اوايل رمضان ۱۲۷۹ هـ ق = فبروري ۱۸٦۳ ع – سراج ۲/۷۵ مخ). د ده تر مرګ وروسته يې زوی شهنوازخان هم د اميردوست محمدخان پر خلاف مقاومت وکړ خو په پای کې تسليم سو.

(۵) وګ : ميوند مجله، دويم کال، درېيمه ګڼه، تله – ليندۍ ۱۳۸۲ ش، ۳۰ مخ.

(٦) ماته داسې ښکاري چې د ميوند مجلې چلوونکو به د علامه مرحوم خپل تلفظ له کسيټ څخه سم استخراج کړی نه وي.

زهمچو او پسری شد جـهان پیر عقیم
زهمچو او خلفی دهـــر دون عنین آمد

بلـند مرتبه سردار قندهــــار که او
زروزگار ســــزاوار آفـرین آمد
بجنگ باتن تنها بســان شیر عرین
بدشت کین پی دفــع مخالــفین آمد
بعزم قتل وی از هـر طرف نموده کمین
ســپاه ازبک بیدین زراه کـین آمد
عدو چو هاله و او در میانه همچون ماه
عدو چو خاتــم و او در میان نگین آمد
بسی بکشت ازآن ناکسان و آخــر کار
شهید از ستم قــــوم ظالمـین آمد
تبارک الله ازان شـیر بیشهٔ مــردی
صد آفرین بروانش که خـوش متین آمد
زروزگار جــفاکار گشـته بود ملول (۷)
بسوی روضهٔ رضوان و حـور عـین آمد
چو آفتاب بمغرب زمـین غـروب نمود
بسان گنج بخـــاک سیه دفـین آمـد
زعقل سال وفــاتش طلب نمـودم گفت
که طرزی از چه سبب خاطرت حزین آمد

بگیر از سر هـــر مصرعی کنون حرفی
که سال فــوت محمد علم همـین آمد

(۷) شاعر په دې مصرع کې د وخت له حالاتو څخه د سردار محمدعلم خان نارضائیتی ته اشاره کوي. دا هغه ټکی دئ، چې د تاریخ سلطانی مؤلف هم بیان کړی دئ او تاسي مخکې ولووست.

وگر زمقطع آن سـال فوت جوئی گوی
زروی زین علم فتح بـر زمـین آمد[۸]
۱۲۷۳

علامه رشاد مرحوم د (افغانستان) نومي کتاب د ایراني مؤلف علی قلي میرزا له خولې روایت کوي، چې سردار محمدعلم خان عالم سړی و. وایي چې ده د افغانستان یوه دقیقه نقشه جوړه کړې وه او په یوه اروپایي ژبه هم پوهېدی، علامه مرحوم د ده په مؤلفاتوکي د (اخلاق نامه، مولود نامه، تحفهٔ خلفاء) نومونه اخلي[۹]، خو باید ووېل سي چې د علامه مرحوم دغه بیان په هغه شفاهي وینا کي راغلی دئ، چې په کابل کي یې د علامه محمود طرزي د اوپایم تلین په غونډه کي کړې وه او د میوند مجلې د ده وینا په چاپي توگه خپره کړې ده. په راتقل سوي ثبت کي ددغو مؤلفاتو نسبت د سردار محمدعلم خان زوی نظرمحمدخان ته هم کېدلای سي. ما (هوتک) ته اوس د دې موضوع د سپینېدو امکانات نسته . د اروانباد حاجي عبدالمجید هوتک په کتبخانه کي د قاضي غلام محمد هوتک د یوه اثر (عالمیه، در تعداد علوم) قلمي نسخه وه چې مؤلف د سردار محمدعالم خان په‌نامه کښلې وه. د دې نسخې کاتب فیض احمد نومېږي او د کتابت کال یې ۱۲۷۱هـ ق دئ.د سردار محمدعلم خان پنځه زامن پاته سول : گل محمد خان، نظر محمد خان، دادمحمدخان، فتح محمد خان او محمدانورخان. نظر محمد خان یې په سل کلنۍ کي په کندهار کي مړسو[۱۰].

[۸] حل : د قصیدې د بیتو د لومړیو مصرعو د سرتوري (ف، س، ج، ب، ز، ب، ب، ب، ع، ب، ت، ز، ج، ز، ب، و) او د دوهمو مصرعو د سر توري (ک، ز، ب، ب، ز، ز، ب، س، ع، ش، ص، ب، ب، ک، ک، ز) دي. د دې ټولو تورو د ابجدي ارزښتو مجموعه ۱۲۷۳ کېږي. دغه راز د مقطع وروستی مصرع (زروی زین علم فتح بر زمین آمد) ابجدي ارزښت پدې شرط ۱۲۷۳ کېږي، چې د (آمد) په کلمه کي د سر ممدوده الف پر دوو الفو وشمېرل سي. معمائیون زیاتره وختونه ممدوده الف پر دوو شمېري. سردار محمدعلم خان د ۱۲۷۳هـ ق کال د کوچني اختر پر اوولسمه = ۱۱جون ۱۸۵۷ع شهید سو، (میوند مجله، ۲ کال، ۳ گڼه، ۳۰ مخ).

[۹] میوند مجله، هماغه گڼه.

[۱۰] میوند مجله، هماغه گڼه.

# علامه محمود طرزي

علامه محمود طرزي د سردار غلام محمد خان طرزي قندهاري زوی، د سردار رحمدل خان لمسی او د سردار پاینده خان کړوسی و، چې د ۱۲۸۵ هـ ق کال د ربیع الثاني په لومړۍ نېټه = ۵ سنبله ۱۲۴۷هـ ش = ۲۲ جولای ۱۸۶۸ع په غزني کې زېږېدلی او نوم یې د سلطان محمود غزنوي د زیارت په تبرک، محمود پرایښی و.

چو کرد اختر سعدش طلوع در غزنین
نهاد نام گـــرامیش را پدر محـمود

دانشمند او شاعر پلار یې د ده د زېږېدلو تاریخي قطعه داسې ویلې ده:

هـــزار شکر که از فضل کـردگار ودود
پدید شد دُری از کان فیض و معدن جـود
زدودمــــان دو عــالی نژاد والاجاه[1]
زخـاندان دو ســـرور بساعت مسـعود
یگانه گوهـــر دریای سروری و جـلال
بهین نـــقادهٔ شـاهان معدلت آمـود
کشاده شـد برخ دوســتان زمـــقدم او
هــران دُری که بد از غـش پیشـتر مسدود
بروز غـــرهٔ مـــاه ربیع الـثانی بود
که آمــد آن گل نورس ببوسـتان شـهود

---

[1] د محمود طرزي مور سلطنت بیگم نومېدله او د شهزاده مودود سدوزي لور وه. عزیزالدین وکیلي وایي چې سلطنت بیگم د شاه محمود سدوزي له اولادې څخه وه (سفرهای غازی امان الله شاه، ۳۶۱ مخ اوله حاشیه) په (زدودمان دو عالی نژاد والاجاه) کې د ده مورګنۍ او پلرګنۍ دواړو ته اشاره سوې ده. سلطنت بیگم په ۱۹۰۸ع کال په کابل کې مړه سوه او د تیمورشاه په ګومبته کې ښخه سوې ده (وګ: د انټرنېټ په پاڼو کې د The Barakzai Dynasty پاڼه د Tarzi برخه).

چو کــــرد اختر سعدش طلوع در غزنین
نـــــهاد نام گرامیش را پدر محـــمود
پی تفحــص حــــــال ولادتش طــرزی
ســوال کـــــــرد زپیر خرد چنین فــرمود
دو از حساب عدد کم کن و بگو پس ازان
"شگفت نــو گل عــالی زدوحۀ مقصود"
(دیوان ۱۵۸مخ)[۲]

**د محمود طرزي لومړۍ روزنه د ده د دانشمند پلار او د کندهاري سردارانو د کورنۍ د استاد ملا محمداکرم هوتک پر لاس پیل سوه خو دی لا زلمی و، چي پلار او د کورنۍ ۳٦ تنه غړي يې د سردار محمد ایوب خان په استعماري ضد تحریک کي د ګډون یا پلوۍ په تور د امیر عبدالرحمن خاني استبداد قرباني سول او په ډېره بده وضعه د کندهار له لاري برتانوي**

---

[۲] حل : په دېوان کي يې وروستۍ مصرع ته په عدد ۱۲۸۴ کښلي دي، چي يوه حسابي تېروتنه ده. د دې تېروتني له امله ځینو څېړونکو د علامه محمود طرزي د زېږېدو کال څکه ۱۲۸۲هـ ق بللی دئ، چي د معما په حل کي يې له ۱۲۸۴څخه دوه کم کړي دي. خو ما (هوتک) چي دغه تاریخي مصرع (شگفته نو گل عالی زدوحۀ مقصود) محاسبه کړه، ۱۲۸۷ په لاس راغلل. له دې عدد څخه چي د مقطع د لومړۍ مصرع په حکم دوه تفریق سي، ۱۲۸۵ لاس ته راځي. ۱۲۸۵ هـ ق کال د ۱۸٦۸ع کال د اپریل پر ۲۴ مه پيل کېږي. په دې ډول د ۱۲۸۵هـ ق کال د ربیع الثاني لومړۍ نېټه د ۱۸٦۸ع کال د جولای له ۲۲ سره او هغه بیا د ۱۲۴۷هـ ش کال د زمري له څلرمي یا پنځمي سره برابرېږي (وګ : A comparative Calender د Ahmad Birashk تألیف– هاشمي، عبدالقدوس، تقویم تاریخی، ۱۹٦۵ چاپ کراچی).

کاندید اکادمیسن محمداعظم سیستاني په (علامه محمود طرزی، شاه امان الله و روحانیت متننذ) ۱٦مخ کي د محمود طرزي د زېږېدو نېټه د ۱۲۴۴هـ ش کال د وږي میاشتي په لومړۍ = د ۱۸٦۵ع کال د اګسټ په ۲۳ مه بللې ده. دا نېټه يې د حبیبي له جنبش مشروطیت څخه اخیستې ده. غبار په تاریخ ادبیات افغانستان ص ۱۰٦ کي د محمود طرزي تولد ۱۲۸۵ق کښلی دئ. محمدولي ځلمي په کندهار مشاهیر، ۲۷۰ مخ کي هم د زېږېدو نېټه ۱۲۸۵هـ ق دربیع الثاني لومړۍ لیکلې ده. په دې ډول د مرحوم غبار، محمدولي ځلمي قولونه زما له محاسبې سره سم دي او همدا د محمود طرزي د زېږېدو نېټه ده.

هند (کوئټې او بیا کراچي) ته وشړل سول (جنوري ۱۸۸۱ع)[۳]. د شړل سوو وطندوستانو په دې کاروان کي ځوان محمود طرزي هم شامل و. دی چي له وطنه وتی، د خپل پلار په مرسته یې په ادب او هنر کي دومره څه زده کړي ول، چي د یوه باذوقه او باسواده زلمي سره ښایېدل. پر فارسي ادبیاتو باندي یې دومره تسلط درلود، چي پخپله یې هم شعر پکښې وایه. محمود طرزي نږدې یو کال له خپلي کورنۍ سره په کوټه کي تېر کړ او وروسته کراچي ته ولاړ. په کراچي کي یې درې کاله تېر کړل (۱۸۸۲ – ۱۸۸۵ع). په دې درو کلونو کي محمود اردو ژبه زده کړه او د هند د نیمي وچي د علماوو له آثارو څخه یې پراخه استفاده وکړه. په ۱۸۸۵ع کال کي له خپلي کورنۍ سره په کښتۍ کي بغداد ته کډه سو. هورې یې تورکي ژبه زده کړه او دومره پکښې وارد سو، چي د عثماني ترکیې له سلطان او د دربار له نورو اراکینو سره یې د خپل پلار د لیدني کتني پر وخت د ترجمان په توګه برخه اخیستله. د محمود طرزي پلار او کورنۍ یې د سلطان عبدالحمید په غوښتنه په ۱۸۸٦ ع کال دمشق ته ولاړل او هورې یې ۱۴ کاله تېر کړل. په دمشق کي څورلس کلني استوګني محمود طرزي ته د عربي ژبي د زده کړي او په نورو علومو کي د مطالعاتو پراخه زمینه برابره کړه. دی د عثماني ترکیې په پراخ قلمرو کي وګرځېدی او د وخت له مشهورو سیاسي او فرهنګي کسانو سره یې علمي اړیکي ټینګ کړل. په ۱۹۰۰ کي یې پلار مړ سو او دی له همدې وخته وطن ته د بیر ته ستنېدو په لټه کي سو. یو کال وروسته امیر عبد الرحمن په کابل کي مړ سو (۱ اکتوبر ۱۹۰۱ع = ۱۹ جمادی الثاني ۱۳۱۹هـ ق)[۴] او پر ځای یې امیر حبیب الله خان پر تخت کښېنوست. محمود طرزي له همدې

---

[۳] جنبش مشروطیت، ۱۰۹مخ. خو محمود طرزي په سیاحتنامهٔ سه قطعهٔ روی زمین جلد اول ۱۰ مخ کي وایي چي دی په ۱۳۰۱ هـ ق کال له وطنه وتلی او په ۱۳۲۲هـ ق کال بیرته راستون سوی دئ. په ۱۳۰۱هـ ق کال کي د ۱۸۸۳ع کال دوې میاشتي او د ۱۸۸۴ع کال تقریباً لس میاشتي شاملي دي.

[۴] په تقویم تاریخي مرتبهٔ عبدالقدوس هاشمي کي یې د امیر عبدالرحمن وفات د ۱۹۰۱ع کال د اګسټ ١٦امه بللې ده، چي د ۱۳۱۹هـ ق کال د جمادی الاول له لومړۍ نېټې سره سمون خوري او د جمعې ورځ کېږي؟

موقع څخه استفاده وکړه او کابل ته د امیر د فاتحې او نوي امیر ته د مبارکۍ په نیامت راغی. نهه میاشتې یې تېرې کړې. په دې وخت کې امیر حبیب الله خان د خپل پلار د وخت فرار کړه سوي کورنۍ خپل هیواد ته د بیرته را ستنېدو له پاره راوبللې. محمود طرزي ته یې هم هیواد ته د راستنېدو له پاره بلنه ورکړه. دی دمشق ته ولاړ او په ۱۹۰۵ع کال له خپلې ټولې کورنۍ سره بیرته کابل ته راستون سو[۵].

په کابل کې یې د هیواد چوپړ ته ملا وتړله. اته کاله یې سراج الاخبار وچلاوه، په نظم او نثر کې یې تر دېرشو زیات کتابونه تالیف او وژباړل. په سیاست کې یې د مشروطه غوښتونکو ډلې ته لارښووني وکړې، د ځوان اماني دولت د متفکر مغز په توګه یې د انګرېزي استعمارګرانو او وطني رجعت پسندو دښمني پر سر واخیستله او د اماني دورې په پای کې بیرته په ژړاندو سترګو له وطنه وتلو ته مجبور سو او استانبول ته ولاړ. د ۱۹۳۳ع کال د نومبر پر ۲۲مه = قوس ۱۳۱۲ ش = شعبان ۱۳۵۲هـ ق د ۶۸ کالو په عمر د اینې د سرطان په ناروغي مړ سو او د ابو ایوب انصاري ﷺ زیارت په څنګ کې خاورو ته وسپارل سو[۶].

---

[۵] جنبش مشروطیت، ۱۱۰مخ. محمود طرزي په سیاحتنامهٔ سه قطعهٔ روی زمین جلد اول ۱۰ مخ کې وایي چې دی په ۱۳۲۲هـ ق کال بیرته راستون سوی دئ. په دغه هجري قمري کال کې د ۱۹۰۵ع کال د سر دوې میاشتې او شل ورځې شاملې دي (وګ : هوتک، محمد معصوم، پرتلیز کلیز، (ناچاپ).

[۶] علامه محمود طرزي هغه وخت چې پلار یې له دمشق (شام) څخه د حج په سفر روان و، او دی ورسره تر اسکندریې پورې ملګری و (۱۳۰۸هـ ق شوال)، د حضرت خواجه ایوب انصاري ﷺ په زیارت مشرف سوی و. دی په (سیاحتنامهٔ سه قطعهٔ روی زمین، ۳۹۰ مخ) کې د دغه زیارت په باب مفصل بیان لري او د خپل پلار له خولې لیکي چې د ابو ایوب انصاري ﷺ بشپړ نوم خالد بن زید ابو ایوب الانصاري الخزرجي و. له نامه سره یې (الخزرجي) ځکه کیښې چې د بني خزرج قبیلې ته منسوب و. ابو ایوب ﷺ د حضرت معاویه په وخت کې استانبول ته د یوه لښکر په ملګرتیا راغلی و، او په ۵۰ هجري کې همدلته وفات سوئ دئ (سیاحتنامه ۳۹۵مخ).

## محمود طرزي د سيد جمال الدين افغان په محضر کي[۷]:

محمود طرزي د خپل پلار سردار غلام محمدخان طرزي قندهاري په امر او لارښوونه په ۱۳۱۴ هـ ق (۱۸۹٦ ع) د شرق د آزادۍ غوښتونکو د پيشوا سيد جمال الدين افغان محضر ته ولاړ او اووه مياشتي له دغه پرفيضه محضر څخه مستفيد سو. د محمود طرزي دانشمند پلار د علامه سيد له ډېرو نږدې دوستانو او ارادتمندانو څخه و، نوموړي په خپل ديوان کي (د کراچي چاپ ۱۸۹۲ ع) د سيد په باب دوې قصيدې ويلي دي، چي زه وړاندي پر ېرغېدلی يم. محمود طرزي ليکي:

"علامه سيد جمال الدين يک معدن عرفان بود، اين هفت ماه مصاحبت من با او بقدر هفتاد ساله سياحت در بر دارد... مباحث علميه، حکميه، فلسفيه، سياسيه، اجتماعيه و غيره که هر روز در محفل بزم حضور آن علامهٔ دهر جريان می يافت، هر جمله و عبارهٔ آن کتابه، رساله ها تحرير بکار دارد...[۸]".

زما د معلوماتو له مخي په افغانستان کي د لومړي ځل له پاره د علامه سيد جمال الدين افغاني په باب ليکنه په سراج الاخبار افغانيه کي سوې ده. د دغي جريدې د شپږم کال (۱۲۹۵ ش) په دريمه ګڼه کي سلطان محمدخان کابلي د (سلسلهٔ مشاهير افغان) تر سرليک لاندي يو مضمون په دري ژبه خپور کړ، چي له عربي څخه يې ژباړلی و.

په دغه مضمون کي يې د سيد د ژوند د حالاتو او د ده د اصل و نسب په برخه کي په زړه پوري معلومات ورکړي دي. دی يې د افغانستان د کونړ (مضافاتو) ته منسوب بللی دئ. د دغه مضمون په تعقيب د سراج الاخبار افغانيه سرمحرر علامه محمود طرزي يوه مقاله د (علاوه معلومات بر ترجمهٔ احوال السيد جمال الدين افغان) وليکله، چي د همدغي جريدې د شپږم کال په پنځمه ګڼه کي يې خپره کړه. په دې مقاله کي يې له سيد

---

[۷] په دې برخه کي به زه د خپلي يوې مقالې يوه برخه له څه بدلونونو سره رانقل کړم. دا مقاله مي د علامه سيد جمال الدين افغان د شخصيت د درناوي د هغي غونډې له پاره ليکلې وه، چي په تېر تېرو پوهنتون کي د ۱۹۹۷ ع کال د نومبر پر ۱۹ د افغاني محصلينو په همت جوړه سوې وه او هورې مي ولوستله. د مقالې بشپړ متن زما په ناچاپ اثر (کچکول، اټوک) کي خوندي دئ.

[۸] حبيبي، عبدالحی پوهاند، جنبش مشروطيت در افغانستان، ۱۱۳ مخ.

افغان سره د خپلو ليدنو کتنو، د سيد د اصل و نسب او د سيد د ناروغۍ او وفات په باب ډېر ارزښتناک مطالب راوړي دي.

ګويا په افغاني مطبوعاتو کي د سيد افغان په باب لومړني معلومات له سراج الاخبار څخه پيل کېږي. البته تر سراج الاخبار دمخه سردار غلام محمدخان طرزي د علامه سيد په وصف کي قصيدې ويلي وې خو په اخباري سطحه کي سراج الاخبار افغانيه لومړۍ جريده ده، چي سيد افغاني راپېژني. د سردار غلام محمدخان قندهاري قصيده پر دېوان سربېره د کابل مجلې د ۱۳۱۲ ش کال په څلرمه ګڼه کي او بيا د ۱۳۱۸ ش کال په نهمه ګڼه او د ارواښاد مير غلام محمد غبار پرملي په تاريخ ادبيات افغانستان په ۱۸، ۱۷، ۱٦ مخو او نورو افغاني منابعو کي هم چاپ سوې ده.

## محمود طرزي او سراج الاخبار

سراج الاخبار په ۱۳۲۹ ق کال د شوال پر ۱۵ او د ۱۲۹۰ ش کال د مېزان پر ۱٦ مه نېټه (۹ اکتوبر ۱۹۱۱ ع) په کابل ښار کي د مطبوعاتو د پلار علامه محمود طرزي په مديريت او سرمحررۍ خپور سو. يو کال يې په سنګي چاپ خپروني کولې او کله چي عنايت مطبعه تاسيس سوه (۱۳۳۰ ق)، سراج الاخبار هم په همدې مطبعه کي چاپېدی. د اخبار نګراني د ملکي ايشک آقاسي علي احمد خان پر غاړه وه[۹]. په کابل کي يې د کلني اشتراک وجه اته کابلۍ، په هيواد کي دننه څورلس کابلۍ، په خارج کي نيم انګليسي پونډ او په کابل کي يې د يوې ګڼې بيه يوه شاهي وه. اخبار په هرو پنځلسو ورځو کي خپرېدی. د سنګي چاپ په وخت کي يې د خطاطۍ چاري د ميرزا محمدجعفر قندهاري له خوا سر ته رسېدلې او مهتمم يې الحاج عبدالخالق و[۱۰]. سراج الاخبار ټول اووه کاله خپور سو. د اووم کال له شروع څخه يې سرمحرر محمود طرزي له خپل

---

[۹] دا هماغه علي احمدخان و، چي د شاغاسي خوشدل خان زوی کېدی او خوشدل خان د امير امان الله خان ماما و. د ده په باب به د کتاب په پای کي ورغېږو.

[۱۰] په ځينو منابعو کي د سراج الاخبار د لومړي کال خطاط الحاج عبد الخالق ښوول سوئ دئ، (وګ: مطبوعات افغانستان، د محمد کاظم آهنګ او ډاکټر محمد ظاهر صديق ګډه ليکنه، ۵۸ مخ، کابل، ۱۳۵۱ش. الحاج عبد الخالق د سردار غلام محمد خان طرزي زوی و، (وګ: د همدې ليکني ۱۵۳ مخ).

نامه سره د طرزي پر ځای (افغان) لیکی او په دې برخه کې یې په سرمقاله کې خپل دلایل هم بیان کړي دي. د لومړي کال له اتمې گڼې وروسته یې کلیشه په سراج الاخبار افغانیه واوښتله. سراج الاخبار په اوو سرو کلونو کې هر کال ځلېرویشت گڼې خپور سوئ دئ او وروستی گڼه یې په ۱۵ ربیع الاول ۱۳۳۷ ق = ۲۷ قوس ۱۲۹۷ ش = ۱۹ دسمبر ۱۹۱۸ ع خپره سوې ده.

محمود طرزي د سراج الاخبار په پاڼو کې پښتو ژبه هم له یاده ونه ایستل او په حقیقت کې د سراج الاخبار د خپرېدو له هماغه پیل څخه دا توقع کېدله چې اخبار به د ملي ژبې پښتو په برخه کې هم هڅه و تلاښ وکړي. د دې کار له پاره څو موجه علتونه موجود ول. یو خو دا چې د اخبار د فاضل مدیر او سرمحرر زیاتره دایمي همکاران عبد الهادي پرېشان داوي، عبدالرحمان خان لودین، عبدالعلي خان مستغني، غلام محی الدین خان افغان، مولوي صالح محمدخان هوتک او نور د سرمحرر په گډون ټول پښتانه ول او په پښتو و فارسي ژبو یې د نظم و نثر لیکلو پوره توان درلود. بل دا چې دا ټول ښاغلي د سیاسي او ملي موقف په لحاظ یا د جوانان افغان د ډلي فعالین او یا یې پلویان ول. د جوانان افغان د ملي ډلي په سیاسي کړنلاره کې ملي یووالی او د افغانستان د ملي گټو او ارزښتونو حمایه او خوندي کول اساسي ټکي وو. د همدې ملي دریځ په نتیجه کې وینو چې علامه محمود طرزي د دوهم کال په نهمه گڼه نهم مخ کې (۱۵ صفر ۱۳۳۱ ق = ۲۳ جنوري ۱۹۱۲ ع = ۳دلو) د (مبحث زبان) په ستون کې د (زبان افغانی اجداد زبانها است) تر عنوان لاندي یوه مفصله مقاله خپروي، چې په هغې کې یې د پښتو ژبې پر اصالت او قدامت پوره رڼا اچولې ده. د همدې گڼې په یوولسم مخ کې یې په یوه جدول کې د (پلار، مور، خور، ورور او لور) کلمې په افغاني (پښتو)، فارسي، سانسکریټ، کردي، ارمني، رومي، لاتیني، جرمني، انگلیزي او فرانسوي ژبو کې مقایسه کړي او دغه راز یې د (شعبهٔ اریان) او (زبان افغانی) په بحث کې ثابته کړې ده، چې (زبان افغانی اجداد زبانها و ملت افغانی اجداد اقوام اریانها) دي. تر دې مقالې وروسته په اخبار کې پښتو نشرات پیل کېږي.

څرنگه چې مطبعې پښتو توري نه درلودل، ځکه یې په فارسي تورو باید پښتو مطالب لیکلي وای، چې دې کار د پښتو مضمونونو لوستل لږ څه مشکل کړي دي. خو بیا یې هم خپلو نشراتو ته دوام ورکړی دئ.



**محمود طرزي**

د سراج الاخبار د خپرولو پر وخت

# د محمود طرزي سياسي او فرهنګي هڅې

د محمود طرزي د هلکيني زمانه په افغانستان کي د امير شېرعليخان د لومړي وار پاچهۍ د پای له کلونو سره برابره ده. دی غټ هلک و، چي انګرېزي لښکري دوهم وار پر افغانستان راتوی سوې او د ميوند په تاريخي غزا کي د ده د کورنۍ ډېرو مشرانو تربرونو برخه اخيستې وه. ده په هلکتوب کي لا د انګرېزانو د استعماري مظالمو او پر هيواد باندي د هغوی د تېري مصيبتونه ليدلي ول. دی پخپل کتاب (سياحتنامهٔ سه قطعهٔ روی زمين در ۲۹روز) کي کتې متې همدا لار پالي. محمود طرزي د دغه سياحت په ترڅ کي استانبول ته د سفر په لار کي د بېړۍ (واپور) له کپتان سره، چي د روسيې تبعه دئ، د افغانستان د هغه وخت د سياسي موقعيت او حالت په باب خبري کوي او کپتان ورته د افغانستان د تحت الحمايګۍ خبره کوي. پر ځوان محمود بېګ باندي دا خبره دونه درنه تمامېږي چي د شپې هيڅ خوب نه ورځي. شپه تر سهاره نا ارامه لټ پر لټ تېروي. دی ليکي:

"سبحان الله! اين کلمهٔ (وطن) چقدر مقدس و عزيز يک کلمه ايست! شرف، ناموس، عزت، حيات همه در همين سه حرف اين کلمهٔ مقدس مندرج است. آيا چسان انسانی تصور شود که شرف و ناموس و حيات خود را در زير حمايهٔ ديگری به بيند، و زندګانی بتواند؟ يک افغان در هر جای که باشد به آزادی و استقلاليت افغانستان، خود را افغان ميشناسد، مليت، قوميت هر فرد بوطنش قايم است. وطن چون در اغوش حمايت ديگری باشد مليت و قوميت کجا باقی ميماند! شرف و ناموس کجا ميرود؟[11]". او په دې ترڅ کي خپل خالق لايزال ته د مناجات لاسونه پورته کوي او وايي:

"ای خلاق عظيم الشان کائنات، و ای حيات بخشای منن جملهٔ موجودات! وطن عزيز مقدسم را از شر دشمنان بدکيش ضرر انديش پر قوت آن که يکی از طرف شرق و جنوب مانند يک اژدر دو سر آتشين پيکر

---

[11] هماغه سياحتنامه، ۱۴۲ – ۱۴۳مخونه.

کریه المنظر، از تونل (کوژک) و (درهٔ خیبر) برای بلع نمودن وجود نازنین لطافت اثر او هر دو سر پر شور و شرر پرور خود را برون آورده، و دیگری مانند سیلاب خروشان بلا توامانی که آب از چرکاب نجاست آلودخانه براند از دین و ناموس تشکیل یافته، و از مدت مدیدی از تالاب های منجمدهٔ شمال، وکوه های (اورال) بجریان آمده، و آهسته آهسته صحراهای ترکمن و اراضی واسعهٔ آسیای وسطی را باچرکاب خود پُر واملا نموده، و آخرالامر از طرف غرب و شمال کوههای شامخ وطن عزیز مارا سد حایل جریان خود را یافته، و لحظهٔ از پیدا کردن یک مجرایی برای جریان خود فارغ نه نشسته بفضل وکرم نامتناهی و حفظ و حمایت صمدانی خود محافظه و صیانت فرما... یارب! یاالله!![۱۲]".

وطن ته تر راستنېدو وروسته يې د افغاني منورينو په مرسته د مشروطه غوښتونکو د سیاسي هڅو په سمبالولو کي ډېر زيار وايست. د مشروطه غوښتني هڅي د محمود طرزي تر راستنېدو دمخه هم رواني وې او په دې لار کي منظم فعاليت او سربښندني جاري وې. خو محمود طرزي د دغه فعاليت په سمه لاربښوونه کي خورا ستر رول ولوباوه. دی په عثماني ترکيه کي د خپلو مطالعاتو په ترڅ کي د اروپايي نشنليستانو او منورينو له سياسي او فرهنګي فعاليتو سره اشنا سو. د دغو فعاليتو له مطالعې څخه يې د خپل هيواد د خپلواکۍ غوښتونکي غورځنګ په ګړندي کولو او عملي کولو کي ښه پراخه استفاده وکړه. ده ته دا خبره معلومه وه، چي د افغانستان زياتره تنويري او اصلاحي حرکتونه د دربارو او شاهانو پر لاس ايجاد سوي او پر مخ بېول سوي دي. ده د خپل اصلاحي پروګرام د تطبيق له پاره د کابل په دربار کي د پښې اينښوولو ځای وموند او له خپلو خانداني اړيکو څخه يې په دربار کي دننه د يوې منوري کړۍ د جوړولو له پاره کار واخيست. د امير حبيب الله له دوو زامنو سره يې خپښي وکړه او د عين الدوله امان الله خان د سياسي تفکر په روزنه کي يې ډېر تلاښ وکړ او د خپل تلاښ ښه مغزن ثمر يې واخيست.

---

[۱۲] هماغه اثر ۱۴۵مخ. په دې پاراګراف کي هغو ګواښو ته اشاره سوې ده، چي افغانستان ته له شمال او جنوب (روس او انګرېز) له خوا متوجه وو.



محمود طرزي د خپلي کورنۍ د غړو سره
(په عکس کي سردار عنايت الله خان هم ليدل کېږي)

# محمود طرزي د ژول ورن پر لار

ژول ورن (۱۹۰۵-۱۸۲۸) Jules Gabriel Verne فرانسوی لیکوال او په ادبیاتو کې د علمي – تخیلي ژانر (science-fiction) یو مخکښ و[۱۳]. د ده په ناولو کې تر بحر لاندي شل زره فرسخه (۱۸۷۰ع)، د مځکي شکم[۱۴] ته سفر (۱۸٦۴ع) او د نړۍ پر شاوخوا باندي اتیا ورځنی سیاحت (۱۸۷۳ع) ډېر مشهور دي. د نړیوالو احصائیوي معلوماتو له مخي، دی په نړیواله سویه دریم لیکوال دئ، چي آثار یې زیات ژباړل سوي دي. د ده له ځینو آثارو څخه فلمونه جوړ سوي دي او ده ته کله کله د ساینس فیکشن پلار هم ویل سوي دي. ژول ورن د خپلو آثارو د خپرولو له لاري ډېر بډای سو.

د محمود طرزي پر لیکنه باندي د ژول ورن د اثارو اغېزه ډېره څرګنده معلومېږي. لکه ژول ورن چي پخپلو داستاني آثارو کي لوستونکو ته د ساینس او تکنالوژۍ د پرمختیاوو، په انساني ژوند کي د هغو د اغېزو او د بشري ذهن د ارتقاء او بشپړتیا د بریاوو په هکله رڼېږي او خپل لوستونکي راتلونکي ته هیله من کوي، لکه ژول ورن چي په خپلو لیکنو کي د استعماري ځواکونو له خوا د ملتونو د اسارت پر ضد خپل لوستونکي راپاروي، محمودطرزي هم افغاني ټولني او افغانانو ته د علم او پوهي، ساینس

---

[۱۳] علمي – تخیلي ژانر په ادبیاتو کي یو نوی سبک دئ. پر دغه سبک باندي په لیکل سویو آثارو کي د تخیل عنصر له علمي توجیه ګانو سره داسي اخښلی بخښلی سوی وي، چي یو له بله یې بېلول ممکن نه وي. په علمي – تخیلي اثر کي یو لیکوال په حقیقت کي د انسان آرزوګاني او تمایلات بیانوي. د نړۍ زیاتره اختراعات واردواره په علمي – تخیلي ادبیاتو کي راښکاره سوي دي او بیا یې د عمل جامه اغوستې ده. د ژول ورن د علمي – تخیلي آثارو د نشر په وخت کي نه چا اوبتل په سترګو لیدلی و، نه یې هم د سمندر د تل (عمق) په باب دومره څېړني کړي وې.

[۱۴] شکم (د شین په سکون) = تل، ژورتیا، عمق.

او تخنیک، عصریت او مدنیت تلقین کوي او هغوی ته د (پرد) او (غیردین) د تحت الحمایګۍ پر ضد روحیه ورکوي. محمود طرزي ډېر پرکاره لیکوال و. ده د (سیاحت بر دورادور کرهٔ زمین به هشتاد روز) په یوه میاشت کي وژباړه. د (جزیرهٔ پنهان) ناول يې (۴۷۹مخه) د ترجمې د لومړۍ مسودې د ورکېدو له امله دوهم وار ترجمه کړ. ده دا کارونه د مادي منفعت په خاطر نه، بلکي د یوه تاریخي رسالت په حکم سر ته رسول. دی په دې باب لیکي : "این بندهٔ عاجز ناتوان (محمودطرزی افغان) از ترجمهٔ این آثار بدیعهٔ ادبیه هیچگاه امید و آرزوی ثروت و توانگری رانکرده ام ... چیزیکه موجب شوق و هوس عاجزانه در خصوص ترجمه های آثار ادبیه وفنیهٔ جدیده گردیده است این است که در خارج وطن مدت سی سال از عمر گرانمایه رابسر آوردم، به آموختن زبانهای غیر موفق شدم. عاجزانه تحصیل علوم و فنون جدیده را نمودم. لهذا نخواستم که محصولات فکریه و تحصیلیهٔ خود را در مخزن دماغ در زیر انحصار و احتکار آورده افراد ملت نجیبم را و اولاد وطن عزیزم را ازان محروم گذارم. ارمغان سیاحت سی ساله ام را بنظر ارباب مطالعهٔ وطن عزیزم تقدیم نمودن خواستم و به ترجمه های ناولهای فنی (ژول ورن) از ترجمه های ترکئی جناب احمد احسان بیگ یگان یگان پرداختم ... [۱۵]".



ژول ورن

---

[۱۵] جزیرهٔ پنهان، ٦مخ.

محمود طرزي تر تورکي احمداحسان بيګ وروسته لومړنی ليکوال دئ، چي د ژول ورن آثار يې د شرق خلکو ته د دوی په ژبه وړاندي کړي دي. دی تر پورتنيو خبرو وړاندي ليکي : "در زبانهای غربئی اروپا نمیدانم، اما در زبانهای شرق ناول های فنی ژول ورن، تنهابزبان ترکی عثمانی ترجمه و نشرشده است ..." په دغه وخت کي، چي محمود طرزي د ژول ورن آثار د فارسي ادبياتو پر ګنجينه باندي ورزياتول، دغه آثار، زما د معلوماتو له مخي، په اروپا کي تر انګرېزي او يو دوو محدودو ژبو پرته په نورو ژبو ژباړل سوي نه ول. په دې برخه کي فارسي ادبيات د پښتانه محمود طرزي د احسان مرهون دي.

لکه د ژول ورن د آثارو په شهرت ګټلو کي چي د پيير ژول هتزل د مطبعې[16] رول زيات اغېزمن و، دغه راز د محمود طرزي د آثارو په نشر او تکثير کي د (عنايت مطبعې) اغېزه ډېره ستره ده[(17)]. که له يوې خوا، دا محمود طرزي و، چي د وخت دربار يې د دغه شان آثارو خپرولو او هيواد ته د عصري مطبعې تاسيسولو ته هڅاوه، له بلي خوا د دربار او په سر سره د امير حبيب الله خان او د هغه د زوی سردار عنايت الله خان معين السلطنه متجدد ذوق هم د محمودطرزي د مدني هڅو په ګړندي کولو کي اغېزمن و. دا حقيقت پخپله محمود طرزي هم هر وخت بيان کړی دئ.

محمود طرزي پخپل پياوړي قلم باندي هغه سياسي اختناق ترسيموي چي د هغه له امله زموږ د هيواد خورا ډېري کورنۍ له خپلي پلرنۍ مېني څخه وتلو ته مجبوري کړل سوي دي. دی د سياحتنامې په يوه برخه کي د يوې شړلي سوي تورکۍ کورنۍ بيان کوي، چي د عبدالحميد خاني پوليسو له خورا د سختتو مظالمو سره مخامخ سوې وه. محمود طرزي د دې بيان په ليکلو سره په حقيقت کي له ابايي وطن څخه د خپلي کورنۍ د شړلو جريان د لوستونکي ذهن ته ورننباسي. دی د دغه بيان په ترڅ کي وايي : "... زيرا محقق ميدانم که مَنَفيان اين زمان همان اشخاصيست که

[16] د پيير ژول هتزل مطبعې په باب وګورئ د همدې اثر ۱۳۵ مخ.

[(17)] عنايت مطبعه د امير حبيب الله خان (سراج الملة والدين) په پاچهي کي د هغه د زوی سردار عنايت الله خان له خوا په کابل کي تأسيس سوه (۱۳۳۰هـ ق = ۱۹۱۱ع).

فدائی شرف و شان وطن هستند[۱۸]". او په دې ډول د ضیاء الملة والدین له استبداد څخه د سراج الملة والدین تر ږیره لاندې پرده پورته کوي او نړۍ ته یې رسوا کوي او چې رشتیا سي، ښه یې پورته کوي.

محمود طرزي د ژول ورن آثار د هغو له تورکي ترجمو څخه چې د احمد احسان بیګ له خوا ژباړل سوي وه، په فارسي ترجمه کړي دي. د احمد احسان بیګ هیواد، ترکیه په ۱۹ مه پېړۍ کې د یو لړ بنیادي او کلتوري بدلونونو شاهده وه او د هغو په نتیجه کې د اروپایي پراختیا غوښتني پر ضد خورا غښتلي کلتوري جریانونه پکښې منځ ته راغلل. که څه هم څېړونکو په عثماني مسلمانانو کې د دودیز (عنعنوي) او ماقبل عصري (pre-modern).او عصري (modern) کلتور تر منځ د بېلتون دقیقه نښه نه ده ټاکلې خو د عصریت او عصري کېدلو جریانونه په نونسمه پېړۍ کې چټک سول. په دغه وخت کې عثماني لیکوالو د ادبیاتو اروپایي ژانرونو ته مخه وکړه. په دغو نوو ژانرو کې، چې په عثماني امپراتوري کې منځ ته راغلل، د سفرنامې (travel literature) ژانر ډېر ښه وځلېدی. که څه هم په اسلامي ثقافت کې سفرنامه یو پوره پېژندل سوی ژانر و، خو د نونسمې پېړۍ عثماني منورینو دا خبره ردوله چې عصري سفرنامې د (رِحله) ادب ادامه ده[۱۹].

محمود طرزي د ژول ورن آثار هغه وخت په فارسي ترجمه کړي ول (۱۳۲۵هـ ق )، چې ژول ورن لا له دې نړۍ څخه سترګې نه وې پټې کړي. خو د دې فارسي ترجمو چاپ هغه وخت ممکن سو، چې د اصلي لیکوال (ژول ورن) پر مړینه باندې څلور پنځه کاله اوښتي ول. دا ژباړې په ځینو اروپایي ژبو باندې د ژول ورن د آثارو تر ترجمو وړاندې سرته رسېدلې دي.

د ژول ورن دغه لاندې آثار د محمود طرزي په قلم په فارسي ژبه ژباړل سوي دي :

---

[۱۸] سیاحت در سه قارهٔ ... ۵۴۸ مخ.

[۱۹] رِحله په لغت کې له یوه ځایه بل ځای ته کوچېدلو ته وایي. په ادبیاتو کې د سفر داستان او د هغه په جریان کې د مشاهداتو او لیدنو کتنو بیان ته (رحله ادبیات) وایي چې اوس ورته سفرنامه وایي.



محمود طرزي (۱۹۱۹ع)

(د امان الله خان د لومړۍ کابینې د نورو غړو سره)

**سیاحت بر دور ادور کرۀ زمین به هشتادروز :**

د دې ناول فرانسوي نوم (Le tour du monde en quatre-vingts jours) و، چي ژول ورن په ۱۸۷۳ع کال کي د (Hetzel) مطبعې له لاري خپور کړ.

د دې سیاحت تګلوری له لندن څخه سویز ته، له سویز څخه بمبئي ته، له بمبئي څخه کلکتې ته، له هغه ځایه هانګ کانګ ته، له هانګ کانګ څخه یوکوهاما ته، له یوکوهاما څخه سانفرانسیسکو ته، له هغه ځایه نیویارک ته او له نیویارکه بیرته لندن دئ. دا سفر په اورګاډي او بېړۍ (steamer) کي سر ته رسېدلی دئ.

محمود طرزي دا ناول په ۱۳۲٦هـ ق = ۱۹۰۸ع کي له تورکي څخه په فارسي ترجمه کړئ و او په ۱۳۳۰ هـ ق = ۱۹۱۲ع کال یې د عنایت مطبعې له لاري چاپ کړ. دی وایي چي د ژباړي کار یې په دېرشو ورځو کي سر ته ورساوه[۲۰] تورکي ژباړه یې د احمد احسان په قلم سرته رسېدلې وه. د فارسي ژباړي ټول مخونه یې ۲۷٦ دي.

ما (هوتک) د ژول ورن د دغه ناول یوه بله فارسي ترجمه هم لیدلې ده، چي (دور دنیا در هشتاد روز) نومېږي او د ژباړي او چاپ کال یې زما په اخیستل سوي یاداښت کي نسته، ځکه کومه نسخه چي ما د دې ژباړي کتلې وه، د سر له خوا نیمګړې وه، لومړی، شپږمه، اوومه، لسمه، یوولسمه، دیارلسمه، څورلسمه پاڼه یې سپینه پاته وه او چاپ سوې نه وه، خو یقین مي دئ چي د محمود طرزي تر ژباړي به خورا ډېر کلونه وروسته سر ته رسېدلې وي. د دې ژباړي مترجم (ناظر نعمتي) نومېږي او ناشر یې (انتشارات مجرد – تهران) دئ. ناشر یې پخپل یاداښت کي د ژول ورن تر لندې پېژندني وروسته وایي چي : "به همین سبب است که تجدید ترجمه و نشر هر یک از آثار این نویسندۀ گرانقدر و سرشناس جهانی، هنوز و باز هم، خدمتی است رواوشایسته به رشد و اندیشه های مستعد و بارور...". له (تجدید ترجمه) څخه ما ته داسي څرګنده سوه چي له ناشر سره د دغه اثر د یوې بلې فارسي ترجمې په باب معلومات ول. دا چي دا ترجمه به د محمود

[۲۰] سیاحت بر دور ادور کرۀ زمین، ۲۷۵مخ.

طرزي ترجمه وه که کومه بله يوه، زه اوس څه نه سم ويلای.

## سياحت در زير بحر :

دا ناول، چي په فرانسوي يې نوم (vingt mille lieues sous les mers) دئ، ژول ورن په ۱۸۷۰ع کال کي خپور کړی او ناشر يې هتزل دئ. د دې ناول کيسه د يوه خيالي شخص کپتان نمو Captain Nemo[۲۱] او د هغه د اوبتل (نوتيلوس Nautilus) په باب ده. کپتان نمو د ژول ورن په لومړۍ مسوده کي يو پولينډی مهاجر و، د پولينډ د تجزيې او د خپلي کورنۍ د وژلو د غچ اخيستلو په نيت راولاړ سوی و، خو د ناول د ناشر، هتزل په مشوره يې له هغه څخه يو هندی شهزاده جوړ کړ، چي د سکهانو تر جګړې وروسته د برتانوي امپراتورۍ پر خلاف جنګېدی. د هتزل له خوا دا بدلون ځکه پيشنهاد سوی و، چي ده نه غوښتل د فرانسې نژدې ملګری هيواد روسيه د دې ناول په خپرېدو بلندي خوابدې کړي. د محمود طرزي په فارسي ترجمه کي، کپتان نمو د هند د مشهور جنګيالي سلطان ټيپو وراره ښوول سوئ دئ[۲۲].

دا ناول په ۱۸۷۲ع کي د (Lewis Mercier) له خوا په انګرېزي ژبه ترجمه سو او بيا وروسته په ۱۸۷۵ع کي W.H.G. Kingston له سره وژباړه ځکه د لويس مرسيير ژباړي ډېري غلطۍ درلودې. نوې انګرېزي ژباړه يې

---

[۲۱] نمو لاتيني کله ده او د (هيڅوک) معنی لري. وايي ژول ورن د دې نامه په ټاکلو کي د يوناني هيومر پيروي کړې ده، ځکه د هيومر په اوديسه کي د ماجرا اتل اوديسوس ځان (اوتيک) بولي، چي په يوناني ژبه کي د (هيڅوک) په معنی کارېږي. (له انټرنيټ څخه).

[۲۲] وګ : جزيرهٔ پنهان، ۴۴۸مخ.

د ټيپو سلطان (۱۷۴۹– ۱۷۹۹ع) نوم فتح علي و. پلار يې حيدر علي سلطان (۱۷۲۲ – ۱۷۸۲ع) نومېدی، چي په ۱۷۶۶ع کال په هندوستان کي د ميسور د ښتني نوابۍ د رياست پر مقام ناست و. حيدر علي سلطان له انګرېزانو سره ډېري جګړې وکړې او په همدې جګړو کي يې د شهادت درجه وګټله. تر ده وروسته يې زوی فتح علي (ټيپو سلطان) د پلار پر مسند کښېنوست. دی هم د پلار پر لار روان سو او د انګرېزانو په تېغ شهيد سو. وګ : هيوادمل – زلمی، په هند کي د پښتو ژبې او ادبياتو د ايجاد او ودې پړاوونه، ۳۵مخ، د اردو انسايکلوپيډيا، طبع ۱۹۶۸ع، ۴۸۴ مخ په حواله).

د والټر جيمس ميلر (Walter James Miller) او فريدريک پال والټر (Fredrick Paul Walter) له خوا د ۱۹۸۹ او ۱۹۹۱ع کلونو تر منځ سر ته رسېدلې ده. دا ناول هم د فلم په شکل خپور سوی دئ.

محمود طرزي د دې ناول ترجمه د ۱۳۲۵هـ ق کال د محرم پر شلمه بشپړه کړې او عنايت مطبعې په ۱۳۳۲هـ ق = ۱۹۱۴ع کال چاپ کړې ده. فارسي ترجمه يې ۳۶۲ مخه ده. دا کتاب د عنايت مطبعې شپږم چاپ سوی کتاب دئ، چي ترجمه يې د احمداحسان بيګ له تورکي ژباړې څخه سر ته رسېدلې ده. د لوستونکو د معلوماتو له پاره به بده نه وي، وليکم چي د کتاب د پلورلو ځای يې (دکان بازمحمد کتاب فروش در بازار ارګ و از دکان ملا غلام محمد کتاب فروش متصل مدرسهٔ شاهی) ښوولی دئ. بيه يې دوې کابلۍ روپۍ وې. د شاهي مدرسې شاوخوا اوس هم د کتاب پلورونکو يو دوه دوکانه لري.

## جزيرهٔ پنهان :

د جزيرهٔ پنهان نوم په فرانسوي ژبه کي (LILE MYSTERIEUSE) و. د انګرېزي ژباړې نوم يې (Mysterious Island) دئ. دا ناول، چي په حقيقت کي د (سياحت در زير بحر) ادامه ده، د (قضازده ګانو) د يوې ډلې بيان دئ چي په يوه ناپېژندل سوې ټاپو کي يې ځانته يوه کوچنوټې ټولنه جوړه کړې وه. دا ډله په يوه بالون کي د امريکا د ويرجينيا ايالت له ريچمنډ نومي سيمي څخه د امريکا د کورنۍ جګړې په وخت کي تښتي. د دوی بالون يوې ټاپو ته نژدې سقوط کوي. د دوی يو غړی سوی ملګری د يوه نامعلوم شخص له خوا له اوبو څخه راايستل کېږي او دارو درمل ورکول کېږي. دې ډلې ته وروسته څرګندېږي چي دا شخص (کپتان نمو) دئ، چي تاسي يې له نامه سره د (سياحت در زير بحر) د ښوولو په ترڅ کي اشنا سوي ياست.

علامه محمود طرزي د دې ناول د ژباړې له لاري که له يوې خوا لوستونکي د علم او تخنيک له ښېګڼو سره اشنا کوي، له بلې خوا هغوی ته استعماري ضد روحيه هم تلقينوي.

محمود طرزي وايي، چي دا ناول يې د ۱۳۲۴هـ ق کال په پای کي په

فارسي ژبه ژباړلی و او پوازي يې يوه قلمي نسخه له ځان سره خوندي کړې وه. دا نسخه ځني ورکه سوه او ده دوهم وار د هغې ترجمې ته ملا وتړله. په دې برخه کي دی ليکي، چي "ارباب ترجمه و تحرير انکار نخواهند فرمود که عيناً يک اثر را دوبار ترجمه کردن تاچه درجه بر طبيعت و ذهن شاق و دشوار می آيد !...[۲۳]".

د سياحت در زير بحر او جزيرهٔ پنهان ناولونه ځيني رسامۍ هم لري، چي د هيواد د نامتو انځورګر غلام محمد ميمنګي په قلم رسامي سوي[۲۴].

## سياحت در جو هوا :

(سياحت در جو هوا) ما ډېر پخوا لوستی و. اوس يې کومه نسخه راسره نسته. محمود طرزي د هغه په باب[۲۵] داسي ليکي : "اين کتاب يک ناول بسيار مفيد فنی است که موضوع آن آموختن فن ماشين های طيار و معلومات طبيعی تبدلات هوائی است، که بسيار شيرين و مرغوب يک ناوليست. اين کتاب نيز از تأليفات ژول ورن فرانسوی است".

---

[۲۳] جزيرهٔ پنهان، ۸ مخ.

[۲۴] علامه حبيبي په جنبش مشروطيت در افغانستان کي ليکي: پروفيسور غلام محمد خان ميمنګي د عبدالباقي خان زوی او په ميمنه کي د ازبکانو يوې مشهوري کورنۍ ته منسوب و. دې کورنۍ د امير عبدالرحمان خان له کورنۍ سره هم خپلوي درلوده. ميمنګي د مشروطيت غورځنګ په لومړۍ ډله کي شامل و. د ده هنري آثار او کاريکاتورونه په سراج الاخبار کي چاپ سوي دي. دی د لومړي مشروطيت په ډله کي د غړيتوب په تور بندي سو او د اماني دورې په سر کي له بنده خوشي او برلين ته د هنري تحصيلاتو د دوام له پاره ولېږل سو. وفات يې د ۱۳۱۳ ش کال د لېندۍ پر څورلسمه پېښ سوی دئ او د کابل د عاشقان و عارفان په هديره کي ښخ دئ.

[۲۵] سياحت در زير بحر، ۳۶۴ مخ.



محمود بيگ طرزي او سردار عنايت الله خان (۱۹۰۹ع)

# د محمود طرزي د آثارو بشپړ لیست[۲۶]

**۱- مجموعهٔ صنایع:**

دا د کلاسیکو فارسي شاعرانو یوه تذکره ده، چې په پنځو سوو مخو کې په کراچي کې راغونډه کړې ده (۱۳۰۰هـ ق = ۱۸۸۳ع). خطي نسخه یې د مؤلف پخپل خط د ده د مشر زوی عبدالوهاب طرزي په کتابتون کې خوندي وه.

**۲- گزیده های از شعرهای غلام محمدخان طرزی:**

د سردار غلام محمد خان د اشعارو غورچاڼ دئ، چې د محمود طرزي په انتخاب راغونډ سوی دئ.

**۳- مجموعهٔ اخلاق:**

دا کتاب یې په دمشق کې د جلاوطنۍ پر وخت کښلی و (۱۳۰۵هـ ق = ۱۸۸۸ع) خطي نسخه یې د اروا ښاد محمدصالح پرونتا په کتابتون کې خوندي وه او د همدې نسخې له مخې د کابل په دولتي مطبعه کې چاپ سوئ و.

**۴- دیباچهٔ دیوان غلام محمد خان طرزی افغان:**

د دې اثر بشپړ نوم (دیباچهٔ دیوان سراسر عنوان در ذکر شمهٔ از احوال سردفتر اهل زبان، سخن فهم نکته دان جناب طرزی صاحب افغان طول عمره) دئ، چې د نوموړي دېوان په سر کې راغلی دئ. ټول مخونه یې ۱٦ دي. د دغه دېوان بشپړه پېژندنه د همدې اثر په (۱۴۹ مخ) کې ولولئ.

**۵- سیاحتنامهٔ درِ سعادت؟**

په دې کتاب کې یې سلطان عبدالحمیدخان ته د سردار غلام محمد خان طرزي د اخلاق حمیدیه کتاب د وړاندي کولو په خاطر د سفر خاطرات

---

[۲۶] د دې لیست په برابرولو کي زما پر خپلو یادابنتو سربېره له ویبپاڼې څخه هم استفاده سوې ده. د کتابو د لیست ترتیب د همدې ویبپاڼې د ترتیب له مخي ټاکل سوی دئ.

ليکلي دي. دا سفر په ۱۳۰٦هـ ق = ۱۸۸۸ع کي سوی و[۲۷]. د کتاب ټول متن په لاس کي نسته خو يو فصل يې په (از هر دهن سخنی و از هر چمن سمنی) کي خوندي دئ.

**٦ - سياحتنامۀ سه قطعۀ روی زمين در ۲۹ روز :**

دا کتاب د هغه سفر بيان دئ، چي محمود طرزي له خپل پلار سره يو ځای په ۱۳۰۸هـ ق کال سر ته رسولی و. د علامه پلار سردار غلام محمد خان طرزي په دغه کال حج ته روان او محمود طرزي ورسره تر سکندريې پوري ملګری و. دغه سياحتنامه په ۱۳۳۳هـ ق = ۱۹۱۵ع کال د کابل په عنايت مطبعه کي چاپ سوې ده او ما (هوتک) په همدې کتاب کي ښه ډېره استفاده ځني کړې ده.

**۷-از هر دهن سخنی و از هر چمن سمنی :**

دا کتاب په ۱۳۳۱هـ = ۱۹۱۳ع کال د عنايت مطبعې له خوا په کابل کي چاپ سوی دئ. د کتاب په سر کي د معين السلطنة عنايت الله خان په لاسليک درې مخه مقدمه لري او ورپسې په بېلابېلو موضوعاتو کي لنډي لنډي مقالې دي. لومړۍ مقاله د (ادبيات) تر سرليک لاندي او وروستۍ يې (بهار را دوست دارم) ده. د کتاب ټول مخونه ۲۶۸ دي او په پای کي يې ۴ مخه فهرست چاپ سوی دئ. د کتاب د کاغذ رنګونه سپين، خړ، ژړ، زرغون او سور دي.

**۸-روضۀ حکم :**

دا کتاب هم د عنايت مطبعې له خوا په ۱۳۳۱هـ ق = ۱۹۱۳ع کال چاپ سوی دئ. په سر کي د معين السلطنة له خوا دوه مخه مقدمه لري. روضۀ حکم د محمود طرزي له خوا په ۱۳۰۸هـ ق په دمشق شام کي ليکلی و. دا کتاب تر ديباچې وروسته د (فضايل علم، حکمت، معرفت) په نامه باندي پيل کېږي. په پای کي يو مخ فهرست لري. د کتاب ټول عنوانه ۲۹ دي او ټول کتاب ۱۵۸ مخه دئ.

**۹ - تلخيص حقوق بين الدول :**

له تورکي ژبې څخه په فارسي ژباړل سوی او ويل کېږي چي امير

---

[۲۷] وګ : د همدې کتاب ۷۹ مخ.

عبدالرحمن خان ته استول سوی و.

۱۰ - مطالعات صحیه :

دا کتاب هم له تورکي څخه په فارسي اړول سوی و. وايي چي خطي نسخه يې د اروابناد صالح پرونتا په کتبخانه کي خوندي وه.

۱۱ - سوانح زندگی :

دا اثر يې د ځينو تورکي دوستانو په غوښتنه په تورکي ژبه کښلی و. د ده مشر زوی عبدالوهاب طرزي په فارسي ترجمه کړی دئ.

۱۲ - رسالۀ اغذیه :

دا رساله يې د امیرحبیب الله خان په غوښتنه له تورکي ژبي څخه په فارسي ژبه اړولې وه (د ۱۹۰۷ع شاوخوا). خطي نسخه يې د عبدالوهاب طرزي په کتابتون کي ساتله سوې وه.

۱۳ - علم و اسلامیت :

دا رساله د سراج الاخبار د ضمیمي په توګه د (کتاب اول، هدیه سراج الاخبار) په نامه د (الحاج عبدالخالق پسر طرزی مهتمم چهاپه خانه دارالسلطنه کابل) په اهتمام خپره سوې ده (۱۳۳۰ هـ ق = ۱۹۱۲ع). په سر کي پنځه مخه دیباچه لري او وروسته يې متن شروع کېږي چي ټول ۶۴ مخه دئ.

۱۴ -آیا چه باید کرد؟

دا رساله هم له سراج الاخبار سره مل چاپ سوې وه (۱۳۳۰هـ ق = ۱۹۱۲ع). ټول مخونه يې ۱۵۹دي.

۱۵ -توحید خالق یگانه بزبان موالید ثلاثه :

له (موالیدثلاثه) څخه مراد نباتات، جمادات او حیوانات دي. دا فارسي منظومه د سراج الاخبار د دریم کال هدیه او په ۱۳۳۲هـ ق = ۱۹۱۴ع چاپ سوې ده. دا منظومه په ۱۳۲۹هـ ق کال په جلال آباد کي ويل سوې ده او په هغې کي تر (موالیدثلاثه) وروسته د (حکایت بر سبیل تمثیل) تر نامه لاندي هغه کیسه راغلې ده، چي وايي په يوه ځنګله کي ټول حیوانات د انسان له لاسه په غوغا زمري ته ورغلل او زمری د حیواناتو د ژغورني په نیت له انسان سره مخامخ او د هغه په تدبیر په قفس کي واچول سو. د دغي کیسې تصویر غلام محمدخان رسام کښلی او د کتاب په پای کي ورسره

مل سوی دئ. ټوله منظومه ۳۷مخه ده.

۱٦- مختصر جغرافیه :

د سراج الاخبار د څلرم کال هدیه ده او د چاپ کال یې ۱۳۳۳هـ ق دئ. په دې کتاب کې هغه لکچرونه راغونډ سوي دي، چې د (مکتب حربیه سراجیه) د تأسیس په لومړي کال د دغه مکتب زده کوونکو ته د محمود طرزي له خوا ورکړه سوي ول. ټول کتاب ۷۲مخه دئ او په منځ کې نقشې هم لري.

۱۷- رسالهٔ نقطه گذاری :

د دې اثر یادونه د ارواښاد صالح پرونتاله خولې سوې ده.

۱۸- معلم حکمت :

د سراج الاخبار د پنځم کال هدیه او په ۱۳۳۴هـ ق =۱۹۱٦ع کال خپره سوې ده. د کتاب ټول مخونه ۱۰۴ دي او په پای کې د محمود طرزي نامه ته (فی ۱۴شعبان ۱۳۳۴) نېټه لیکل سوې ده.

۱۹- وطن و معانی متنوعه و محاکمات حکمیه آن :

د سراج الاخبار د شپږم کال هدیه او په ۱۳۳۵هـ ق = ۱۹۱۷ع کې چاپ سوې ده. په سر کې ۷مخه مقدمه لري او په هغې کې د وطن په یاد دغه لاندي بیتونه راوړل سوي دي، چي له وطن سره د مینې شدید احساس پکښې بیان سوی دئ :

باز هوای چمنم ارزوست
کابل جنت وطنم ارزوست

یا:

در غربت اگر مرگ بگیرد بدن من — آیا که کَنَد قبر و که دوزد کفن من
تابوت مرا بر سر کوهی بگذارید — تا باد برد بـوی مرا در وطن من

۲۰- سیاحت بر دورادور کرهٔ زمین به هشتاد روز :

وګ : د همدې کتاب۱۲۱ مخ.

۲۱- سیاحت در جو هوا :

وګ : دهمدې اثر ۱۲۴ مخ.

۲۲- بیست هزار فرسخ سیاحت در زیر بحر :

وګ : دهمدې اثر ۱۲۲ مخ.



محمود طرزي (۱۹۲۰ع)

(د میسور په کنفرانس کې د افغاني هیئت د غړو سره)

**۲۳ – جزیرهٔ پنهان :**

وګ : د همدې کتاب ۱۲۳ مخ.

**۲۴ – تاریخ محاربهٔ روس و ژاپن :**

د روس او جاپان د ۱۹۰۴ – ۱۹۰۵ع کلونو د جګړې تاریخ چې په پنځو ټوکو کې له تورکې څخه په فارسي ژباړل سوی او عنایت مطبعې په کابل کې چاپ کړی دئ.

لومړی ټوک له فهرست پرته ۲۹۲ مخه او په ۱۳۳۴هـ ق چاپ سوی دئ.

دوهم ټوک ۲۵۶ مخه او په ۱۳۳۴هـ ق کال چاپ سوی دئ.

دریم ټوک یې زما تر نظر نه دئ تېر سوی.

څلرم ټوک ۳۱۴ مخه او په ۱۳۳۶هـ ق کال چاپ سوی دئ.

پنځم ټوک ۳۰۵ مخه او په ۱۳۳۶هـ ق کال چاپ سوی دئ.

**۲۵ – نامهٔ محمود طرزی به امان الله خان :**

د امان الله خان په نامه یو لیک دئ، چې په ۱۹۲۲ع کال د دسمبر پر دوهمه یې له پاریس څخه ورلېږلی دئ او په هغه کې یې د هغه وخت د نازکو حالاتو په باب خپل نظریات بیان کړي دي. د دې لیک اصل د مرحوم صالح پرونتا په کتابتون کې خوندي و.

**۲٦ – یادداشتها :**

د ۱۹۱۹ – ۱۹۲۸ع کلونو خاطرات دي، چې لاسکښلې نسخه یې د عبدالوهاب طرزي په کتبخانه کې ساتله سوې وه.

**۲۷ – سیاحتنامهٔ استانبول :**

خطي نسخه یې له عبدالوهاب طرزي سره خوندي وه.

**۲۸ – سیاحتنامهٔ منظوم :**

دا سیاحت نامه محمود طرزي د پلار تر مړیني وروسته په ۱۳۱۸هـ ق کې له شام څخه تر استانبول پوري د سفر په باب ویلې ده او نوم یې (سفر بعد از وفات پدر) پر ایښی و. د دې نسخې یوه کاپي یې د عثماني ترکیې داخله وزیر او بله یې د معارفو وزیر ته لېږلې او د معارف وزیر یې د چاپ اجازه هم ورکړې وه خو د ځینو مشکلاتو له امله چاپ نه سوه او علامه طرزي چې کله د وطن پر لور د راتګ پر مهال هندوستان ته ورسېد، په لاهور کې یې د هغې یوه نسخه د (پیسه اخبار) مدیر (محبوب عالم صاحب)

ته د هغه په غوښتنه د نشر له پاره سپارلې وه. کابل ته تر رسېدو وروسته، محمود طرزي د هغې د خپرېدو اراده پخپله وکړه او له لاهور څخه یې نسخه راوغوښتله خو وایي چې له بیا بیا احوال لېږلو سره سره یې نسخه لاس ته ورنغله او له ناچارۍ څخه یې هغه څو بیته چې په حافظه کې پاته وه، د خپل بل اثر (پراګنده) په ۱۵مخ کې خپاره کړل. د دغې خپرې سوي برخې څو بیته داسي دي :

بعد از ثنا و حمد خداوند لایزال
گویم ترا ز قصه احوال پر ملال
چرخ فلک بما سر نیرنگ کرد باز
محروم ساخت دیده ز دیدار دلنواز
یعنی که بُد مرا پدری مهرپروری
مشفق بُد و رحیم بُد ولطف گستری
هم شاعر و ادیب و حکیم و دبیر بود
اندر وطن وزیر بُد و یا امیر بود

............

در لیله برات و شب جمعه از سنین
بُد یکهزار و سه صد و هجده که شد قرین
با رحمت اله رحیم و کریم خویش
رفت از جهان بسوی جنان نعیم خویش

**۲۹ – افغانستان، اثر منظوم یا جغرافیه :**

په ۱۳۲۳هـ ق = ۱۹۰۵ع کال په کابل کې ویل سوې ده.

**۳۰ – ادب در فن یا محمود نامه :**

د فارسي نظمونو مجموعه ده، چې په ۱۲۹۲هـ ق = ۱۹۱۳ع کال عنایت مطبعې چاپ کړې ده.

**۳۱ – شعر های بدون عنوان :**

د امان الله خان په وخت کې د ویل سوو شعرونو مجموعه ده. نسخه یې له عبدالوهاب طرزي سره خوندي وه.

**۳۲ – پراګنده :**

د اشعارو مجموعه او په ۱۳۳۲هـ ق کال چاپ سوې ده، چې د شاعر

وروستی شعر هم پکښې خوندي دئ[۲۸]. دلته هم پر وقایه باندي د چاپ سنه ۱۳۳۲ ښوول سوې ده خو د معین السلطنة سریزي ته (غره رجب المرجب ۱۳۳۳) نېټه ورکول سوې ده. دا مجموعه یو ترجیع بند لري چي په تورکي ژبه (ضیاپاشا) ویلی و او محمود طرزي په عین ترتیب سره په فارسي نظم ژباړلی دئ. (پراګنده) ۱۴۴ مخه لري او له فهرست، غلطنامې او د عنایت مطبعې له اعلانو سره یې د مخونو شمېر ۱۶۰ کېږي.

**۳۳ - شعر های غربت :**

د جلاوطنۍ د وخت شعرونه.

**۳۴ - ژولیده :**

د اشعارو مجموعه.

**۳۵ - پژمرده :**

شعري مجموعه.

**۳۶ - دیدنی ها و شنیدنی ها :**

**۳۷ - ادب در فن :**

دا اثر، چي د خپرېدو د نېټې له خاطره مي باید د لیست په سر کي راوړی وای، په ۱۳۳۱ هـ ق کال په حروفي چاپ خپور سوی دئ. اصل نوم یې (ادب در فن یا محمودنامه) او فرعي نوم یې (دیوانچه غزلیات محمود طرزی به ترتیب ردیف) دئ. په مقدمه کي یې د فارسي (پنج کتاب) د محمودنامې او د همدې محمودنامې تر منځ پر توپیرونو رڼا اچول سوې ده. ټول کتاب ۴۵ مخه کېږي. لومړی غزله یې تر (حسن ابتدا) وروسته (رفوچکرهوا)[۲۹] او وروستی یې د (ترقی) تر سرلیک لاندي ده. داسي ښکاري چي محمود طرزي لومړی غزله د (جلال) نومي شاعر په پیروۍ ویلې ده. د غزلي څوبیته داسي دي :

---

[۲۸] د علامه محمود وروستی شعر، چي تر هغه وروسته یې بیا شعر نه دئ ویلی، دا دئ :

شمعیم که جامد شدهٔ شعله وداغیم

سردیم چو کافور، ولی درد سراغیم

ده افغانان، دار السلطنهٔ کابل ۱۳۳۳ هـ ق

[۲۹] د (اب رفوچکرهوا) اردو عبارت معنا دا چي (اوس له سترګو نیهام سوي دي).

گرچه آن پیشین زمانه، اب رفو چکر هوا
و ان همه نقل و فسانه، اب رفو چکر هوا
لیک خوبی و بدی هرگز نشد پنهان بدهر
چشمهای عبرتانه، اب رفو چکر هوا

.......................

گفت محمود اینسخن را چون (جلال) خوش مقال
خواب غفلت را فسانه، اب رفو چکر هوا

زه (هوتک) د محمود له آثارو سره په نهه کلنۍ کي مخامخ سوی یم. زموږ په کور کي د محمود طرزي (سیاخت در زیر بحر)، (جزیرهٔ پنهان)، (پراگنده)، (از هر دهن سخنی و از هر چمن سمنی) او ځیني نور آثار موجود ول. زه واردواره د محمود طرزي آثارو ته د فارسي ژبي د زده کولو له اسیته تشویق سوی وم. خو وروسته مي د هغه له ترجمو سره د زړه مینه هم پیدا سوه. د دې ترجمو سره مي علاقه دومره زیاته سوه، چي د څلوېښتمو شمسي کلونو په ترڅ کي مي په پښتو باندي د (جزیرهٔ پنهان) ناول ترجمه پیل کړه خو بشپړه مي نه کړه او ترجمه سوي پاڼي مي هم له لاسه ووتلې. ښاغلي جهاني د دې خبري یادونه په یوه رادیویي پروګرام کي کړې ده.

## د احمد احسان بېګ په باب څو خبري

احمد احسان بیګ د عثماني ترکیې له منورینو څخه و او د (ثروت فنون) په نامه یې یوه مصوره جریده چلوله. ده په لومړي سر کي په یوه حکومتي دایره کي د کاتب په توګه کار کاوه او د میاشتي یې دوه پونډه تنخواه اخیستله. څه موده وروسته د ژول ورن د آثارو د ترجمې فکر ور پیداسو او (Le Tour du Monde en quatre-vingts jours) یې له فرانسوي څخه په تورکي ژبه ترجمه کړ. دا ژباړه یې د استانبول په یوه مطبعه کي چاپ کړه او په لږ موده کي یې دوه درې زره ټوکه وپلورل. په دې پیسو یې یوه کوچنوټې حروفي مطبعه تأسیس کړه او د ژول ورن د نورو آثارو د ژباړو له لاري یې دومره ثروت راغونډ کړ، چي د محمود طرزي په قول، احمداحسان بیګ د پنځلسو، شلو زرو پونډو په پانګه د یوې ستري مطبعې

څښتن سو[۳۰].

## د ژول ورن د آثارو د خپروونکي هتزل په باب

پییر ژول هتزل (۱۸۸٦-۱۸۱۴) Pierre-Jules Hetzel د فرانسې يو مشهور ایډیټور او خپروونکی و. په ۱۸۷۳ ع کال يې يوه خپروونکې مؤسسه تأسیس کړه او د خپل وخت د ډېرو مشهورو لیکوالو، لکه ویکتور هوګو، بالزاک، امیل زولا آثار يې د همدې خپروونکي موسسې له لاري خپرول. خو ده د ژول ورن د آثارو د فوق العاده ښکلي او مصور چاپ له لاري ډېر شهرت وګاټه. د ژول ورن هغه آثار چي د هتزل له خوا خپاره سوي دي، اوس هم ډېر پېرودونکي لري. دا موضوع، چي آیا پییر ژول هتزل د ژول ورن د شهرت سبب سو او که د ژول ورن د آثارو له برکته د هتزل مؤسسه په نړیوالو باندي وپېژندل سوه، تر ننه پوري لا هم د پوهانو تر منځ د بحث وړ مسئله ده.

## په تبعید کي له پښتنو سره اړیکي

د محمود طرزي پلار او نیکه په کندهار کي اوسېدل او ټول ژوند و ژواک يې د کندهاریو پښتنو و. خو د کورنۍ هغه غړي يې چي په کابل کي اوسېدل، پخپلو منځو کي په پارسي ږغېدل او د ټولو پښتو زده وه. کله چي به يې اړتیا احساس کړه، په پښتو يې خبري کولې. پخپله محمود طرزي هغه راز پښتو ویله، لکه کابلي سوي پښتانه چي يې وايي. زه به د کتاب په دې برخه کي د ده له سیاحتنامې څخه یوه په زړه پوري کیسه رانقل کړم.

محمود طرزي چي کله په شام کي اوسېدی، ډېره هڅه يې کوله چي له مهاجرو افغانانو سره تګ راتګ ولري. دی پخپله سیاحتنامه کي له یوه مهاجر پښتون سره د خپلي لیدني کتني بیان کوي. دا سړی ملا جلندر نومېدی او په (یافه) کي اوسېدی[۳۱]. ملا جلندر د ده د پلار اشنا و. د

---

[۳۰] جزیرۀ پنهان، ۷ مخ.

[۳۱] یافه د بیت المقدس په شاوخوا کي د یوه بندر نوم دئ.

سیاحتنامې له مخې، محمود په ملا جلندر پسې د افغانانو د اوسېدني سیمې ته ورځي او هورې له یوه بل افغان څخه د ملا جلندر پوښتنه کوي. دا افغان پر محمود باندې د تورکي خیال کوي او خپل ملګري، شهاب الدین ته ور برغ کوي.

محمود طرزي د دغه کندهاري پښتانه مکالمه پخپله سیاحتنامه کې په پښتو ژبه داسې رانقل کړې ده:

– "شاه بدین! ته راسه وګوره چه دا ترک څه وایي زه نه پوهیژم!"

محمود ورته وایي:

– "زه پشتون یم په پشتو استا سر خبوري کوم څه راز نه پوهیژی؟"

هغه جواب ورکوي:

–"څه پوهیژم چه لک تا غندی چارچشمه پشتنو هم پیدا کیژی! په خبر ده پوه شوم چه ملا جلندر آخند دی غوشت بیا باور می نشو چه تاسو په پشتو خبر کوی!"[۳۲].

وروسته نو د نوموړي شهاب الدین ساګزي[۳۳] او ملاجلندر سره ښه اوږد مجلس کوي. دی د ملا جلندر په باب لیکي: "ملا صاحب یک شخص افغان بسیار صالح و پرهیزگار و عالم فاضل یک شخصیست. از بسیار سالهاست که از وطن خود برآمده و اکثر عمرخود را در زاویهٔ همین تکیهٔ افغانهای یافه بصیغهٔ شیخی بسر آورده است..."[۳۴].

محمود طرزي په استانبول کې دیوه بل پښتانه اشنا یادونه لري، چې صادق افندي نومېږي. د دې سړي اصل نوم میرزا محمدصادق اخند زاده او د ملا شیرمحمد کندهاري زوی و. د ده په باب د محمود طرزي خپل بیان داسې دئ: "... مقصدم این بود که دوست خود (صادق) افندیرا که در

[۳۲] سیاحتنامه، ۶۵۳ مخ.

[۳۳] ما (هوتک) اورېدلي دي، چې دغه ملا شهاب الدین ساګزی د ملا محمد سرور ساګزي پلار و او ملا محمدسرور ساګزی د امیرحبیب الله خان (سراج الملة والدین) په دربار کې شامل سړی او د ملا فیض محمد کاتب هزاره استاذ کاتب یې په سراج التواریخ کې په درناوي سره یادونه کوي.

[۳۴] هماغه اثر، ۶۵۴ مخ.

سمت استانبول و محلهٔ (چنبرلی طاش) اقامت دارد ملاقات کنم. این صادق افندی، میرزا محمدصادق اخندزاده پسر ملا شیرمحمد قندهاریست. هر گاه بخواهم که ترجمهٔ احوال او را درینجا بنویسم که دو جلد کتاب مستقل نوشته کنم. زیرا این شخص بسن جوانی از وطن خود قندهار، ترک دار و دیار کرده به ایران آمده است و درینوقت تخمیناً پنجاه ساله یک آدمی میباشد. نصف این عمر غربت خود را یعنی تقریباً پانزده سال حیات گرانبهای خود را در ایران، و نصف دیگر آنرا در استانبول بسر آورده که هر یک ازین دو عمر او یک یک جلد کتاب میخواهد. عالم، فاضل، شاعر، فلسفی، کیمیوی، صنعتکار، خطاط یک ذاتیست[۳٦]".

ملا شیرمحمد قندهارَی چي علامه محمود طرزي یې د خپل دوست صادق افندي د پلار په توګه راپیژني، هماغه د پښتو ژبي شاعر او د زیاتو آثارو څښتن ملا شیرمحمد هوتک دئ، چي د لوی احمدشاه بابا د علمي مشاور ملاشاهو اخند (مشهور په ملا ارادت) زوی و[۳۷].

****

علامه محمود طرزي جامع الکمالات شخصیت درلود. عالم و، سیاست پوه و، فلسفي و، شاعر و، خطاط و او د دې پرځنګ هنر دوست و. په موسیقي پوهېدی. ده په خپله مشهوره مقاله (حی علی الفلاح) کي لیکلي وه :

صبح شد برخیز، ســــــازراستی آســا نواز
شام حرمان در عقب باشد، چو وقت از دست شد

(آسا) د موسیقۍ هغه مقام دئ، چي د سپېدو چاوَدلو پر مهال ویل کېږي او په (شام) کي ادبي تلازم پروت دئ او ذهن ته د (شام کلیان) مقام تداعي کوي.

### دوهم بېلتون :

محمود طرزي په ۱۳۰۷هـ ش کال د جدي پر ۲۴ مه (فبروري ۱۹۲۹ع)

---

[۳٦] سیاحتنامه، ۲۵۳مخ.

(۳۷) د ملا شیرمحمد هوتک په باب وګورئ : سل بګړي یو پوړنی، د لیکونکي اثر، ۱۲۵ مخ.

له کابل څخه کندهار ته ولاړ. په کندهار کي يې لس ورځي تېري کړې، په داسي حال کي چي مېرمن او زامن يې ورسره ول، په الوتکه کي هرات او ورپسې ايران ته ولاړ. له ايران څخه يې د ۱۹۲۹ع کال د اکتوبر پر ۲۶مه (۲۱محرم ۱۳۴۸هـ ق) حرکت وکړ او د پخواني شوروي اتحاد د باطوم له لاري يې ترکيې ته پناه يووړه او په استانبول کي مېشت سو[۳۸]. علامه حبيبي د هغه افغاني پيلوټ له خولې، چي محمود طرزي او کورنۍ يې هرات ته رسوله، ليکي چي محمود طرزي په دغه وخت کي ډېري اوښکي تويولې او له ځان سره يې دا پښتو بيت زمزمه کاوه:

دا ستا په مينه په شپو شپو زه کـــړېدلی يمه
اوس دي پرېږدمه چي انګرېز در ته غندلی يمه

پيلوټ وايي چي ده ويل: دا بيت د ده استاد ملا محمداکرم هوتک له هيواد څخه د وتلو پر وخت ويلی و او دوهمه مصرع يې داسي وه (چي روببار در ته غندلی يمه).

له وطن څخه د وتلو درد موږ افغانانو په دې تېرو درو لسيزو کي پر خپل هډ و پوست احساس کړی دئ. الامان له دې درده!

علامه حبيبي ليکي: "... گويا وی در زندگانی خود ملهم بود، که مرگش در فراق وطن عزيزش واقع ميشود و گفته بود:

در غربت اگر مرگ بگيرد بدن من
آيا که کَنَد قـبر و که دوزد کفن من
تابوت مرا بر سر کـوهی بگذاريد!
تا باد وزد بـــر سر آن از وطن من

بعيد نيست که بقدردانی نسل جديد افغان از خدمات گرانمايه اش بوطن، وقتی عظام رميم او را مانند استادش سيد جمال الدين افغانی، بوطن باز آرند، و او را در دل پوهنتون کابل، در کنار سيد مذکور آرامگاه ابدی بخشند:

---

[۳۸] حبيبي، عبدالحی (پوهاند) جنبش مشروطيت، ۱۱۲مخ.
عزيزالدين وکيلي ليکي چي له ايران څخه د کښتۍ په واسطه د بمبئي له لاري استانبول ته ولاړ؟ سفرهای غازی امان الله شاه، ۳۶۲مخ.

"تا باد وزد بر سر او از وطن او[۳۹]"

محمود طرزي د ژوند په وروستيو شپوکي ناراضه ښکاري او د وطن او نړۍ حالات پر خپل زړه برابر نه ويني. دی وايي :

از صلح عمومی چه کنی هـــرزه سرایی
ای نـــــوع بشر صـلح نباشد بنهادت
از جنگ عمومی سخنی گوی چو (محمود)
تا آب حـــیاتی بشـناســد مـدادت

کابل : ۱۵ رجب ۱۳۳۰ هـ ق - (پراگنده، ۸۴مخ)

یا :

گر دست دهد کتاب و شاهد | بایک می کـهنه صفاناک
گاهی نـروم به پیش زاهد | آن زاهد خشک پر خطرناک
تنــهائی و یار و شیشه می | بهتر ز قـصور خسرو و کی

جلال آباد، ۱۳۲۹ هـ ق - (پراگنده، ۷۲مخ)

له بده مرغه، زموږ د هیواد زیاتره فکور وطندوستان د زمانې له ناخوالو ځخه بالآخره همدې نتیجې ته رسېدلي دي.

## د محمود طرزي کورنۍ :

محمود طرزي په دمشق کي د شیخ محمدصالح مسدیه (صالح افندي) له لور (اسماء رسمیه) سره په ۱۳۰۸ هـ ق کال واده وکړ. تر دې وړاندي یې له یوې بلي نجلۍ سره د میني ډېر سخت کړاوونه تېر کړي ول. دا مینه ثمر ته ونه رسېدله او په ناکامۍ سره پای ته ورسېده. سردار غلام محمد خان طرزي یو وخت خپل زوی محمود طرزي ته د دې میني په باب داسي یادونه کړې وه : "ازان عشق طاقت فرسا، که بمرگت رسانیده بود محض بقوهٔ معنوئی روحانیت حضرت یحیی علیه السلام ترا رهایی داده توانستم. زیرا زوجهٔ که برایت گرفته ام هدیه ایست که حضرت نبی حضور آنرا به من برای تو عطا نموده، و بواسطهٔ آن ترا از دام عشق آن معلومهٔ کافره

---

[۳۹] جنبش مشروطیت، ۱۰٦ مخ، د ۱۳٦۳ ش چاپ.

که به هلاکت رسانیده بود، رهانیدم[۴۰]".

د محمود طرزي خسر شیخ محمدصالح مسدیه له خپل زوم سره کابل ته راغی. دی د امیر امان الله خان تر پاچا کېدو دوې میاشتې وروسته د ۱۳۳۷هـ ق = ۱۹۱۸ع کال د رجب د میاشتې پر اتمه د شنبې په ورځ په کابل کې مړ سو او د کابل په قول آبچکان کې خاورو ته وسپارل سو. پر جنازه باندې یې امان الله خان حاضر و. د شیخ محمدصالح مسدیه زوی محمد ادیب خان په اماني دوره کې د امانیه مکتب مدیر و. د محمود طرزي مېرمن اسماء رسمیه په ۱۳۲۴ ش = ۱۹۴۵ع کال په ترکیه کې د قولنج په ناروغۍ مړه سوه[۴۱].

د محمود طرزي د یوې بلې مېرمنې یادونه هم سوې ده، چې وايي خانم جان نومېده او په قوم خوګیانۍ وه[۴۲]. له دې مېرمنې څخه یې یو زوی پیدا سو، چې عبدالقادر نومېدی او په کوچنیوالي کې مړ سو. سردار غلام محمد خان طرزي د دغه لمسي د زېږېدو تاریخ داسې ویلی دئ:

لعبتان نازپرور نیم شب چون آفتاب
با ادا و ناز با نای و نوای و چنگ و دف
شعرگوی و بیت خوان آمد درون حجره ام
گفت طرزی عمر تو درخواب غفلت شد تلف
زود برخیز و بنشین و بما بکشای گوش
مژدهٔ آورده ام پیش تو از شاه نجف
نوگلی از باغ وصلت بالب خندان شگفت
کز حیا پیشش گهر پوشد رخ خود در صدف

---

[۴۰] سیاحتنامهٔ سه قطعهٔ روی زمین، ص ۱۸۰. وايي چې شیخ محمدصالح المسدیه په دمشق کې د اموي مسجد مؤذن و. سردار غلام محمد خان طرزي چې په پورتني نقل قول کې د حضرت یحیی علیه السلام روحاني قوت ته اشاره کوي، بنایي مراد یې له اموي مسجد سره د شیخ محمدصالح المسدیه اړیکې وي. والله اعلم بالصواب.

[۴۱] وکیلي، سفرهای غازی امان الله شاه، ۳۵۸مخ.

[۴۲] ادمک، د شجرو ۷۷ جدول.

جستم از شـادی زجا گفـتم که نامش را بگو
گفت عـبد القادر امــــا بندهٔ شـاه نجف
در جـــمادی اول وشـام دوشنبه نیم شب
ماه من طالـــع شد از برج سـعادت باشرف
نـــور چشمم یعنی نور دیدهٔ محمود بیگ
آمد از کتم عدم رخشان چـو ماهی بیکلف
سال مولود مــــرا از مصرع نامـم بگو
هسـتم عبد الـــقادر اما بندهٔ شـاه نجف
(دیوان ۱۵۹ مخ)[۴۳]

له اسماء رسمیه څخه د محمودطرزي ٦ زامن او ۵ لوڼي پاته سوي دي.

محمود طرزی د خپل زوی عبدالوهاب د زېږېدو نېټه په شعر کي داسي ویلې ده:

چارم ماه بـــود از رمضان — فیضرس لیله ســرور رسـان
سنه هـــجری بعد از الف سنه — سه صد وبیست ویک تو دان سنه
شب سه شنبه ســاعت جاری — من نشسته بـــفکر بسیاری
باز شـــد در یکی مسیحا دم — آمد و گفت مـــژده آوردم
گفتمش چیست مژده ات ای یار — گومرا، و ارهـــان زاستنظار
گفت وهـــاب والمنن بتو داد — ولدی جمله حسن و فضل و سداد
"عبدوهـــاب" یحفظک مولا — از هـــمه آفت و اذا و جـــفا

(پراگنده، ص ۲۲-۲۳)

د عبدالتواب دزېږېدو قطعه:

رمضان شـــهر فـیوضات رحـیم تواب
هست مقبول دران توبه و طاعـــات صـواب
در چنین مـــاه مبارک که در فیـض کریم
باز گشته است بروی همه کس از هـــر باب
آمـــد از کتم عدم ماه جبین یک ولـدی
که زسیمای لطیفش خجل آمـــد مهتاب

---

[۴۳] دا تاریخي ماده حلېده غواړي.

روز پنجشنبه نهم بود زماه رمضان
بیست وپنج وسه صد از الف فزون بود حساب
***
خواستم نام وی از حضرت سردار کریم
نائب السلطنة آن سرور فرخنده جناب
***
نام بنهاد ورا حضرت عالی زکرم
ابن "محمود" بود نام وی (عبدالتواب)
(پراګنده، ص ۵۳)

د عبدالفتاح د زېږېدو نېټه:

خالق کون و مکان رب علیم فتاح
کرد احسان ولدی صاف چو نور مصباح
درشب جمعه و از ماه محرم پنجم
خیر مقدم شده و فیض بیاورد ونجاح
بیست وهفت و سه صد از الف فزون بود سنه
که شد آن گوهر تابنده سرور ارواح
گفت در گوش دلم هاتف غیبی نامش
موجب سعد و فتوح آمده (عبدالفتاح)
(پراګنده، ص ۵۴)



محمود طرزي او اسماء رسمیه



د محمود طرزي خسر صالح افندي او اديب خان (۱۹۰۵ع)



عبدالوهاب طرزي (۱۹۲۰ع)
(د محمود طرزي زوی)



ملکه ثریا (۱۹۲۸ع)
(د غازي امان الله خان مېرمن)



خیریه
(د سردار عنایت الله خان مېرمن)

## د علامه محمود طرزي کورنۍ




* د عبدالقادر په نامه یې یو بل زوی له یوې خوګیانۍ مېرمنې څخه هم سوی و، چې په وړکتوب مړ دئ.

** د امیر امان الله خان مېرمن.

*** د سردار عنایت الله خان مېرمن.

# لالا محمدزمان خان طرزي

## (خازن الکتب)

لالا محمد زمان خان طرزي د سردار غلام محمدخان طرزي دوهم زوی و، چي په ۱۲۷۰ هـ ق = ۱۸۵۳ع کال زیږېدلی و. د لالا محمدزمان خان مور د سردارمهردل خان لور وه. پلار یې د خپل دغه زوی د زیږېدلو پر وخت دوې تاریخي قطعې ویلي دي، چي زه به یې یوه رانقل کړم :

بسکه آئینهٔ رویت بصفاست
خودبخود طوطی شوقم بنواست
وصل خوانند نمیدانم چیست
یار گویند ندانم زکجاست
آمدی زنگ غم از دل بردی
رخ چو آئینه ات زنگ زداست
چون زبان شکر وصالت گوید؟
کمر شکر ازین بار دوتاست
بتمنای قدومت درباغ
غنچه را جامهٔ جان همچو قباست
سال تولید ترا چون طرزی
از در پیر خرابات بخواست
گفت کان بلبل شیرین سخنان
از گلی گلشن گلزار وفاست[۱]

۱۲۷۰

په بله قطعه کي یې د ده د زیږېدلو تاریخي ماده داسي راوړې ده :

---

[۱] د وروستي مصرع ابجدي ارزښت ۱۲۷۳ راوزي، باید حل سي.

بعد ازان ســـال مولـــــدش زخرد
خواست طرزی ازانکه او خبر است
در جـــوابش بگفت پیر خـــــرد
مـــــردم دیده را باو بصراست[۲]

۱۲۷۰

محمدزمان خان لومړنۍ زده کړي د خپلي کورنۍ له استاد ملا اکرم هوتک څخه کړي وې او نور مروج علوم يې د کندهار او کويټې له علماوو څخه لوستي وه. دی د امیر عبدالرحمان خان په پاچهي کي د کابل د مطبعې مهتمم و (۱۳۱۸ هـ ق = ۱۹۰۰ ع)[۳] د امیر حبیب الله خان (سراج الملت والدین) په وخت کي هم د دربار له نزدې کسانو څخه و او پر امیر ډېر ګران و. اروانباد استاد بېنوا ليکي چي امیر به ورته د ډېر ګرانښت له امله د ورور (لالا) خطاب کاوه او له همدې امله په (لالا) بانډې مشهور سو. د امیر حبیب الله خان په وخت کي چي واردواره د کابل په ماشینخانه کي مطبعه تأسیس سوه، د اهتمام چاري يې د لالا محمدزمان خان ورور سردار ګل محمدخان سر ته رسولې او کله چي هغه مړ سو، د مطبعې د مهتمم وظیفه لالا محمد زمان خان ته وسپارله سوه. لالا د حلمي افندي په مرسته د مطبعې د ليتوګرافۍ څانګه بشپړه کړه. تر دې وروسته لالا محمدزمان خان د امیر له خوا د ارګ د کتابتون د ناظم په توګه وټاکل سو. د کتابتون ناظم ته يې په هغه وخت کي (خازن الکتب) وایه، ځکه نو د لالا له نامه سره دغه لقب هم ملګری سو[۴].

لالا په دغه وخت کي د امیر د شخصي منشي په توګه هم کار کاوه. په دغه وخت کي په کابل کي لومړنی دولتي کتابتون هم جوړ سو. د دې کتابتون له پاره يې د کابل په بوستان سرای کي د امیر عبدالرحمن خان د مقبرې په ودانۍ کي ځای وټاکه او لالا محمدزمان خان يې د دغه کتابتون د مدیر په توګه مقرر کړ. کله چي په اماني دوره (مرکه د پښتو) تأسیس سوه

---

[۲] د وروستۍ مصرع ابجدي ارزښت ۱۲۷۰ کېږي.
[۳] وګ: تزوک ناپلیون، د پښتۍ لومړی مخ، ۱۳۱۸ هـ ق چاپ.
[۴] وګ: پښتو چاپي آثار په دوو تېرو پېړيو کي، ۱۱ مخ، ۱۳۵۷ ش.

(تر ۱۳۰۲هـ ش = ۱۹۲۳ع وړاندي) لالا محمدزمان خان يې د لومړيو غړو په ډله کې وو او د (پوازنی پښتو) بدوهمه برخه د ده په قلم ليکلې سوې وه[۵].

د لالا محمدزمان خان د مړيني کال اروانباد استاد بېنوا ۱۳۰۸هـ ق بللی دئ او وايي چې د وباپه ناروغی مړ سو[۶].

لالا محمدزمان خان خورا ښکلی خط کيښ او د خپل پلار دېوان يې (۷۰۸مخه) په ښکلي نستعليق خط کښلی او د ۱۳۱۱هـ ق کال د محرم الحرام په ۲۷ يې د کراچي ښار په فيض محمدي چاپخانه کي چاپ کړ[۷].

د دېوانُ تر چاپ دوه کاله وړاندي يې د خپل پلار سردار غلام محمد خان د قصايدو مجموعه د قصائد فيوض عوائد مع تاريخات جناب سردار غلام محمدخان المتخلص بطرزی صاحب افغان) په نامه په همدې مطبعه کي پخپل خط چاپ کړې وه. د دغي مجموعې په پای کي يې کښلي دي : "تمت تمام شد بعون الملک المنان قصائد سراسر فوائد جناب فصاحت و بلاغت نشان فريد عهد و آوان سردفتر اهل زبان منبع الجود والاحسان سردار غلام محمد خان المتخلص بطرزی صاحب افغان بدست خط احقرالعباد محمدزمان خلف طرزی صاحب افغان طول عمره يوم چارشنبه بيستم رمضان المبارک سنه هجری ۱۳۰۹.

بچرخ نازمـه و مشتری نشان باشد
نشان دولت عبد الحميد خان باشد

قطعات تاريخ تولد و وفات وغيره قطعات طرزی صاحب افغان متصل با قصائدات بسعی و اهتمام سردار محمدانورخان پسر سردار محمد سرور

---

[۵] پښتو چاپي آثار، ۱۰مخ.
[۶] هماغه مقاله، ۱۲مخ.
[۷] د فيض محمدی مطبعې څښتن فيض محمد خان جمعدار و، چي د حبيب الله خان بارکزي ملک دين زي زوی کېدی. ده د کراچي په ښار کي دغه مطبعه پرانيستلې وه. د مطبعې مهتمم د سردار محمدسرور خان زوی سردار محمدانور خان و. سردار محمدسرور خان د سردار غلام محمدخان ورور و. وگ : ديوان طرزي افغان، ۷۰۸مخ. په دغه وخت کي يوه بله چاپخانه هم د (محمدی مطبع) په نامه د هند د بمبئي په ښار کي فعاله وه. د سلطان محمدخان بارکزي تاريخ سلطاني په دغه (مطبع محمدی) کي چاپ سوی دئ، ۱۲۹۸هـ ق.

خان برادر سردار غلام محمد خان خلف الصدق سردار رحمدل خان درانی قندهاری نورالله مرقده. چونکه این کتاب در دفتر سرکاری رجستری شده باید که هیچکس این کتاب را بغیراطلاع سردار محمد انور خان چاپ نکند. حرره محمدزمان ۱۳۰۹". د قصائدو دغه مجموعه ۱۸۴مخه ده.

علامه رشاد (۱۳۰۰ – ۱۳۸۳هـ ش) د لالا محمدزمان خان په لاس د خطاطي سوو آثارو په لړ کي د عبدالقادر خان ختک د یوسف زلیخا نوم اخلي او وايي چي تقریبا سل کاله وړاندي د کابل په دولتي چاپخانه کي چاپ سوې ده[۸].

زما (هوتک) د معلوماتو له مخي د تزوک ناپلیون کتاب چي په ۱۳۱۸ هـ ق = ۱۹۰۰ع د کابل په چاپخانه کي چاپ سوی دئ، هم د لالا په اهتمام ترتیب سوی و. د دغه کتاب پر لومړي مخ باندې کښلي دي: "بحسن اهتمام تمام و سعی مالاکلام راجی رحمت منان محمد زمان خان درانی بارک زایی محمد زایی در چهاپه خانه شاهی دارالسلطنه کابل زیور اختتام پوشیده در مطبع دارالسلطنه کابل طبع شد". کتاب په دې عبارت پای ته رسېدلی دئ: "الحمدلله والمنته که این کتاب لاجواب و این نسخهٔ کمیاب اعنی کتاب تزوک ناپلیون اول که هر ورق آن سرمشق کلیست برای سرکردگان مجاهدان دین مبین و هر صفحهٔ آن سر رشتهٔ وافیست بجهته سپهسالاران افواج ظفر امواج غازیان طریق طرق حضرت سید المرسلین در عهد معدلت مهد حضرت شهریار عدالت آئین پادشاه اسلام پناه امیر ابن الامیر ابن الامیر حضرت ضیاءالمله والدین امیر عبدالرحمن خان غازی خلدالله ملکه و سلطنته که بفرزند ارشد ارجمند خود سردار حبیب الله خان امر فرمود که این کتاب از نوادر روزگار است باید که در چهاپه خانه شاهی چهاپ شود بحسن اهتمام خادم آستان ملایک پاسبان محمدزمان خان بارکزائی محمدزائی مهتمم چهاپه خانه مبارکه و بدستخط غلام قادر کاکری بتاریخ یوم پنجشنبه ۱۴ شهر ذی الحجة الحرام سنه ۱۳۱۸ بقالب طبع در آمد فقط".

اروابناد بېنوا لیکي، چي لالا محمدزمان خان طرزي ځانته مستقل آثار

---

[۸] میوند مجله، ۲ کال، ۳ گڼه، ۳۳ مخ.

لري او په هغو کي د علامه شبلي د (الفاروق) ترجمه يادوي، چي په دوه ټوکه کي يې سر ته رسولې وه. وايي د دغه کتاب د لومړي ټوک څرک نسته خو دوهم ټوک يې د علامه رشاد په کتابتون کي خوندي دئ[۹].

اروابناد استاد بېنوا زياتوي، چي لالا محمدزمان خان د ګوستاولبون (تمدن عرب) هم ترجمه کړی ؤ.

د لالا محمدزمان خان خازن الکتب درې زامن (سردار عبدالسلام خان طرزي، سردار حبيب الله خان طرزي او سردار محمدصديق خان طرزي) او شپږ لوڼي (بلقيس، مېرمن، روح افزا، فاطمه بيګم، خاتمه او حميرا) پاته سوي دي. په لوڼو کي يې بي بي روح افزا په افغانستان کي د ښځو د لومړنۍ جريدې ارشاد النسوان د سرمحررې په توګه ټاکل سوې وه. ارشادالنسوان د ښځو لومړنۍ جريده وه چي د امير امان الله خان په ځلانده دوره کي په ۱۳۰۰هـ ش کال د افغانستان د مطبوعاتو په فضا کي وځلېده. د دې جريدې مديره د علامه محمود طرزي مېرمن اسماء رسميه او سرمحرره يې ميرمن روح افزا وه. د جريدې پر تندي باندي د مېرمن اسماء رسميه نوم په مخفف ډول (ا – ر) او د مېرمن روح افزا نوم (ر – ا) ليکل

---

[۹] د علامه شبلي الفاروق د حضرت عمرفاروق ﷺ د ژوند پېښو بيان دئ، چي بله فارسي ترجمه يې د اعليحضرت محمد نادر شاه خور (محبوبه سلطان) سر ته رسولې او په کابل کي چاپ او خپره سوې ده. محبوبه سلطان د امير حبيب الله خان ماندينه او د سردار اسدالله خان مور وه. ملکې محبوبه سلطان په اردو ژبه کي ډېر مهارت درلود او د دې کتاب فارسي ترجمې ته يې ملا وتړله. د کتاب ترجمه يې بشپړېدو ته نژدې کړې وه، چي يو راز ناروغي ورته پېښه سوه او د ترجمې کار ځني پاته سو. د ملکې پلار سردار محمديوسف خان دغه نيمګړي ترجمه سوي پاڼي مولانا نجف عليخان جلال پوري ته ورکړې، چي بشپړي يې کړي. نوموړي دا کار سر ته ورساوه (جمعه ۲۰ قوس ۱۳۰۹هـ ش = ۲۰ رجب المرجب ۱۳۴۹هـ ق) او اعليحضرت محمد نادرخان يې د چاپ امر ورکړ او په کابل کي چاپ سو (۱۳۱۱هـ ش=۱۳۵۱هـ ق). مولانا نجف علي ليکي، چي د دغي ترجمې متن د اروابناد قاري عبدالله خان ملک الشعراء تر نظر هم تېر سوی او اصلاح کړی يې و. زما مخي ته اوس د دغه کتاب هغه چاپ پروت دئ چي د ډهلي په ګلوب آفسټ پرنټرس کي د کندهار د کتابو د سوداګر حاجي عبدالغفار په اهتمام آفسټ چاپ سوی دئ. علامه شبلي نعماني د عليګړه دارالعلوم پروفيسور او د مجلس ندوة العلماء هند صدر و.

سوی و. مېرمن اسماء رسمیه په (بي بي عربي) او میرمن روح افزا په (منشیه) باندې مشهوره وه[۱۰].

د لالا محمدزمان خان لمسی د سردار محمدصدیق خان طرزي زوی ډاکټر ننګیالی طرزي اوس (۲۰۰۷ع =۱۳۸۵هـ ش) په اسلام آباد، پاکستان کې د افغانستان سفیر دئ.

[۱۰] وګ : آهنگ، محمدکاظم، سیر ژورنالیزم در افغانستان – ۱٦۸مخ، ۱۳۴۹ش، کابل.

# حاجي عبدالخالق خان

حاجي عبدالخالق د سردار غلام محمدخان طرزي بل زوی او د محمود طرزي مشر ورور و. کله چي محمود طرزي په کابل کي د سراج الاخبار په نامه جریده تأسیس کړه، په لومړي کال يې د خطاطۍ چاري د همدغه حاجي عبدالخالق له خوا سر ته رسېدلې[۱]. د ده نوم د شاهي مطبعې د (سرکرده) په توګه یاد سوی دئ. هغه کتابونه چي د حاجي عبدالخالق په اهتمام چاپ سوي او زما تر نظر تېر سوي دي:

**زبدة التجوید:**

د قاري نیک محمد[۲] لیکنه ده او د تجوید مسایل يې په فارسي نظم بیان کړي دي. د دې کتاب د بشپړېدو کال ۱۳۱۹ هـ ق. او د چاپ کال يې ۱۳۲۲ هـ ق دئ، چي د امیر حبیب الله خان په پاچهي کي په (مطبع دارالسلطنة کابل) کی چاپ سوی دئ. د کتاب پر لومړي مخ يې کښلي

---

[۱] مطبوعاتو ته یوه کتنه، ۵۸ مخ.

[۲] قاري نیک محمد خان د حاجي محمد تاجک زوی او د کابل په شمال کي د (دولانه) په کلي زېږېدلی و. په ورکینه له خپل پلار سره د حج په نیت مکې معظمې ته تللی او هورې يې د تجوید او قرائت په علم کي تعلیم سر ته رسولی و. د پلار تر مرګ وروسته يې هورې ګوزاره سخته سوه او بیرته هیواد ته راستون سو. دغه وخت د امیر عبدالرحمان خان د پاچهۍ زمانه وه او ده ته يې په شاهي مسجد کي د قرائت د تدریس وظیفه ورکړې وه. دی وايي:

مولدم دولانه است و کسب علمم از عرب
مسکنم در شهر کابل مشجد شاهی معان
نیکنامـــم با محمد شد مرکب از دو نام
کنیتم فرزند حاجی قوم تاجــک بیگمان

(زبدة التجوید، ۴ مخ)



حاجي عبدالخالق (١٩٢٥ع)

دي: "حسب الفرمان واجب الاذعان سلطان معظم وخاقان مفخم مالک رقاب الامم خلیفه شجعان مسلمین باتخت وتاج تگین حضرت سراج الملة والدین خلدالله ملکه واحسانه. این کتاب مستطاب نویاب کامل المتن بالنظم و شامل الشرح فی الفهم المحشی بهمدة التمجید المسمی به زبدة التجوید بعد از تحقیق تدقیق منظور نظر کیمیا اثر شده جهة روح پر فتوح حضرت ضیاءالملة والدین مرحوم مغفور جنت مکان خلد آشیان که قبله گاه پادشاه ذی شان زمان میباشند محضاً فی سبیل الله طبع و وقف گردیده باهتمام تمام و سعی مالاکلام راجی رحمت المنان حاجی عبدالخالق خان پسر طرزی افغان در مطبعه دارالسلطنه کابل زیور طبع پوشید".

**تحفة الاطفال :**

دا کتاب هم د قاري نیک محمد په قلم له عربي څخه په فارسي نظم ترجمه سوی او موضوع یې تجوید دئ. په عربي ژبه یې ناظم شیخ سلیمان دئ. د تحفة الاطفال د چاپ کال یې ۱۳۲۰هـ ق؟ ښوول سوی دئ. د کتاب په خاتمه کي یې کښلي دي :

"... حسب الفرمان واجب الاذعان خدیو جهان و سلطان آوان مالک رقاب اقوام افغانستان غیاث الاسلام والمسلمین حضرت سراج الملة والدین خلدالله ملکه و سلطانه باهتمام راجی عفوالمنان حاجی عبدالخالق خان سرکرده مطبعه شاهی و بقلم مشکین رقم میرزا شیر محمد بتاریخ هجدهم جمادی الثانی طبع شد".

**قواعد سراج المله فی طریق التعزیه :**

دا رساله واردواره په ۱۳۲۱هـ ق کال د حافظ حیدرعلي احراري په خطاطۍ چاپ سوې ده. د دغه چاپ په پای کې لیکلي دي: "... در مطبع دارالسلطنه کابل بسعی و اهتمام فدوی جانفشان حاجی عبدالخالق و بقلم حافظ حیدر علی احراری در شهر ربیع الثانی ۱۳۲۱هجری طبع شد". دوهم وار چاپ یې د ۱۳۳۷ هـ ق کال دئ. د دغه چاپ پر لومړي مخ یې داسي لیکل سوي دي :

"حسب الفرمان حضرت سرکار عظمت مدار این رساله مسمی به قواعد سراج الملة فی طریق التعزیه بسعی و اهتمام فدوی نشان الحاج عبدالخالق پسر طرزی مرحوم در مطبع دارالسلطنه کابل طبع شد".

**راحت الاطفال:**

دا رساله د کوچنیانو د ناروغیو (شري، کوي، ...) په باب د څو تنو طبیبانو په ګډه همکاري ترتیب سوې او په ۱۳۲۰هـ ق کي د "خادم آستان حاجی عبدالخالق مهتمم چهاپه خانه مبارکه" په اهتمام او د غلام قادر کاکری په خطاطی چاپ سوې ده.

# ګل محمد خان درانی

ګل محمدخان د سردار غلام محمد خان طرزي زوی و. دی د امیر عبدالرحمان خان په پاچهي کي د مطبعې د مهتمم په‌نامه یاد سوی دئ[۱]. د هماغه وخت په اسنادو کي د ده له نامه سره د (دراني بارکزائی محمدزائی) لقبونه ثبت دي او داسي ښکاري چي په همدغو القابو به یادېدی. وایي چي ګل محمدخان دراني څه موده د مطبعې د آمر (سرشته دار) میر محمدعظیم خان[۲] پر ځای کار کاوه او دغه راز یې نوم د دغي مطبعې د خطاطانو په لیست کي‌هم راغلی دئ.

د هغو کتابو نومونه چي د ګل محمدخان دراني په اهتمام چاپ سوي او زما ترنظر تېرسوي دي،دادي :

**رسالهٔ موعظه :**

په دې نامه یو کتاب د امیر عبدالرحمان خان د پاچهۍ په دیارلسم کال (۱۸۹۲ع) کي چاپ سوی دئ. د دغه کتاب پر وقایه باندي لیکل سوي دي: "حسب الفرمان بندګان اشرف همایون والا امیر عبدالرحمن خان باهتمام ګل محمد محمدزائی مهتمم چهاپه خانهٔ مبارکه در مطبع دارالسلطنهٔ کابل چهاپ شد ۱۳۱۰ ق".

**رساله موعظه افغانی :**

دا رساله د فارسي (رساله موعظه) پښتو ترجمه ده، چي د ترجمې کار یې غلام جان افغاني نویس او د چاپ اهتمام یې "ګل محمد محمدزائی" سر

---

[۱] مطبوعاتو ته یوه کتنه، د محمد کاظم آهنګ او ډاکټر محمدظاهر صدیق لیکنه، ۵۳ مخ. ۱۳۵۱ش، کابل.

[۲] میر محمدعظیم خان په سارجن میجر باندي مشهور و او د امیر عبدالرحمن خان په واکمني کي یې د مطبعې د آمر په‌توګه کار کاوه. وګ : هماغه‌اثر، هماغه‌مخ.

ته رسولی دئ. د چاپ کال يې ۱۳۱۱هـ ق دئ. د دغه وخت محدودي پښتو ژباړي د پښتو نثر ډېري ېېخونده بېلګې دي.

**آمدن نامه :**

دا رساله هغو کسانو ته د فارسي ژبي د ښووني په نيامت ليکل سوې وه، چي د کافرستان (نورستان) اوسېدونکي او نوي مسلمانان سوي ول. د رسالې په پای کي داسي لولو: "... اين کتاب لاجواب بجهت افاده مبتديان المسمی به آمدن نامه حسب الفرمان قضا جريان بندگان اشرف اقدس امجد همايون ولاحضرت ظل الهی امير ابن الامير ابن الامير ضياءالملة والدين امير عبدالرحمن خان غازی خلدالله ملکه و سلطنته در مطبع دارالسلطنة کابل از حسن اخلاص و صدق اختصاص مهتمم راجی درگاه الهی گل محمدخان درانی بارکزائی محمدزائی حليه اتمام پوشيده جلوه آرای جهانيان شد فی شهر محرم الحرام ۱۳۱۶هجری".

**ديوان ملا رحمت بدخشانی :**

ميرزا رحمت الله بدخشاني د ميرزا اسمعيل زوی او د بدخشان د درسج کلي اوسېدونکی و. دی په پنځه ويشت کلنۍ کي د قندز د حاکم مير مرادبيګ په خدمت کی شامل سو او خپل دېوان يې هم په قندز کی بشپړ کړی و. دغه ديوان د امير عبدالرحمن په امر او د سردار حبيب الله خان (وروسته امير حبيب الله خان) په توجه او د کابل د دارالسلطنة د چاپخانې د مهتمم (عاليجاه گل محمدخان درانی محمدزائی) په اهتمام او د ميرزا شيرمحمد کاتب په خطاطۍ د ۱۳۱۲هـ ق کال د شوال المکرم په مياشت کي چاپ سوی دئ.

**رساله موعظه :**

دا رساله د امير عبدالرحمن خان د پاچهۍ په ديارلسم کال په څلېرويشتو فقرو کي د نوموړي امير د اجراآتو او پاچهۍ ته د رسېدلو او نورو اجراآتو په باب ليکل سوې او په ۱۳۱۰هـ ق کال چاپ سوې ده. پر لومړي مخ يې لولو : "حسب الفرمان بندگان اشرف همايون والا امير عبدالرحمن خان باهتمام گل محمد محمدزائی مهتمم چهاپه خانه مبارکه در مطبع دارالسلطنة کابل چهاپ شد".

**کتاب قانون افغانستان :**

دا رساله یو دېرش مخه لري، چي په هغو کي اتلس قاعدې بیان سوي دي او زیاتره د دولتي او نظامي مأمورینو مسئولیتونه پکښې بیان سوي دي. د اهتمام چاري یې د کابل د دارالسلطنة مطبعې مهتمم ګل محمدخان سر ته رسولي دي. د کتاب د چاپ کال یې پر لیکلی نه دئ خو غالباً به ۱۹۰۱ع وي.

# سردار حبیب الله خان طرزي

سردار حبیب الله خان طرزي د سردار لالا محمدزمان خان خازن الکتب زوی، د سردار غلام محمد خان طرزي لمسی او د سردار رحمدلخان کړوسی او په ۱۸۹٦ع کال کي زیږېدلی و. کله چي یې اکا (تره) محمود طرزي په اماني عصر کي د بهرنیو چارو وزیر سو، حبیب الله خان طرزي یې د هند او اروپا د تحریراتو د اداري سرکاتب وټاکه. تر هغه وروسته په پاریس کي د افغاني سفارت لومړی مرستیال سو. کله چي وطن ته بیرته راستون سو، د هند او اروپا د اداري مرستیال او وروسته د همدې اداري د رئیس په توګه وټاکل سو[1]. د کرسی نشینان کابل محشی ښاغلی محمدآصف فکرت په دې برخه کي په یوه لمنلیک کي لیکي، چي حبیب الله خان طرزي په ۱۹۲۸ م کال کي د پاریس په افغاني سفارت کي مختار وزیر سو او په ۱۹۳۱م کال د بهرنیو چارو د اداري دریم مرستیال و. ده په سرحدي مذاکراتو او یو لړ نورو ماموریتوکي د افغاني هیئت مشري پر غاړه درلوده. له ۱۹۳۳م څخه تر ۱۹۳۹م کال پوري په توکیو کي افغاني مختار وزیر او د امریکا په متحده ایالاتو کي افغاني سفیر و. په ۱۹۵۳م کال کي تقاعد سو. د ښاغلي فکرت ورکړه سوي معلومات دلودویک ادمک د کتاب له معلوماتو سره ورته دي.

د سردار حبیب الله خان طرزي زامن (عبدالله، وحیدالله، حسیب الله او حمیدالله) دمحمدظاهرشاه په پاچهۍ کي لوړو مقاماتو ته ورسېدل، حمیدالله خان طرزي تر ۱۹۹۰ع کال دمخه د هوانوردۍ او توریزم وزیر و او په همدې کال له کاره لیري سو.

د سردار حبیب الله طرزي ورور محمدصدیق طرزي د ببرک کارمل په حکومت کي د کابل ښار د ښاري شورا مشر و.

---

[1] کرسی نشینان کابل، ۲۱۰ مخ.



سردار حبیب الله طرزي

## د سردار لالا محمد زمان خان (خازن الکتب) شجره



# غلام یحیی طرزي

غلام یحیی طرزي د نائب حبیب الله خان[1] زوی د ګل محمد خان لمسی او د سردار غلام محمد خان طرزي کړوسی و، چي په ۱۸۹۸ع کال زېږېدلی و. دی په لومړي سر کي د افغانستان د بهرنیو چارو په وزارت کي د روس او ترکستان د تحریراتو د اداري د سرکاتب په توګه وټاکل سو، بیا یې په برلین کي د افغاني سفارت د مامور مرستیال مقرر کړ. څه موده وروسته چي بیرته وطن ته راستون سو، د وېزې او ترجمې د اداري د مدیر چوکۍ ور ورسپېده (نومبر۱۹۲٦ع) او تر هغه وروسته د ایران او ترکیې د اداري رئیس سو. مهدی فرخ ایراني لیکي، چي غلام یحیی خان طرزي د غلام صدیق خان څرخي په پارټۍ کي دئ او پر هغه ډېر ګران دئ. غلام یحیی خان طرزي اروپا ته د امیر امان الله خان د سفر ملګری و. د ده مېرمن د امیر حبیب الله خان لور وه او رابعه نومېدله. تر اماني عصر وروسته په سقوي دوران کي هم غلام یحیی خان طرزي څه موده د بهرنیو چارو د مامور په توګه پاته سو. په ۱۹۳۱ ع کال له ایران سره د هلمند د اوبو پر سر د خبرو له پاره د یوه هیئت په مشرۍ چخانسور ته ولاړ. په ۱۹۳۳ ع کال مني کي د خارجه وزیر په توګه وټاکل سو. په ۱۹۳۵ع کال کي د عامي روغتیا د رئیس په توګه، په ۱۹۳۹ع کال د پوستې او ټیلګراف د وزیر په توګه او په ۱۹۴۵ع کال د روغتیا د وزیر په حیث مقرر سوی و. ده په مسکو، پاریس او پراګ کي په ترتیب سره د افغاني سفارت د سفیر دندې هم سر ته رسولي وې[2]. (عکس یې له کرسی نشینان ۲۱۴مخ څخه)

---

[1] دی په ځینو شجرو کي د حبیب الله بیګ په نامه معرفي سوی دئ. د طرزي په کورنۍ کي یو بل حبیب الله خان هم سته، چي د لالا محمدزمان خان خازن الکتب زوی و. دغه دواړه حبیب الله نامي د علامه محمود طرزي ورېرونه دي.

[2] ادمک ۱۵۲مخ، مهدی فرخ، کرسی نشینان کابل، ۲۱۴مخ.

# سردار محمدامين عندليب

سردار محمدامين عندليب د سردار غلام محمد خان طرزي زوی دئ چي د ۱۲۷۱هـ ق کال د روژې پر دوهمه د دوشنبه په ورځ = ۱۹می ۱۸۵۵ع په کندهار کي زېږېدلی دئ. سردار غلام محمد خان طرزي د خپل دغه زوی د زېږېدلو تاريخي قطعه داسي ويلې ده :

شبی کزجوش عشرت ساغر دهر
تهی از غصه و پـــر از شعف شد
جهان از خـرمی غـــم داد برباد
زبس جوش طرب از هر طرف شد
زغصه جان خصم ناخلف سوخت
چو ايجاد چنين ميمون خلف شد
زاخترهـــــا طبقهای جـواهر
فلک پـــــهر نثار او بکف شـد
پی سـامـــان رقص زهره پر چرخ
قـــمر در پنجهٔ ناهـــيد دف شد
طرب ازبس بخود باليد شد عـام
الم کاهيد پس بـر خود تلف شد
شب دوشـنبه و دو از مـــه صوم
ظهور اين دُر از بـطن صـدف شد
پدر بنهـــاد نامش را امـين جان
که تا ايمن ز افسوس و اسف شد
دُر تاريخ او طـرزی چـنان سفت
چه ماهی طالع از برج شـرف شد
۱۲۷۱

په دېوان کي تاريخي ماده د (چو ماهی طالع از برج شرف شد) راغلې

ده او تر هغې لاندي په عدد ۱۲۷۱ ليکل سوي دي. له پورتنۍ مصرع څخه د ابجد په حساب ۱۲۷۲ راوزي، ځکه نو ما د (چو ماهی) پر ځای (چه ماهی) سم شکل وباله او په دې ډول به نو د مصرع ابجدي ارزښت رشتيا هم ۱۲۷۱ سي[۱]. علامه رشاد مرحوم د علامه محمود طرزي د اوبايم تلين په غونډه کي په يوه شفاهي وينا کي، چي په ميوند مجله کي د دغي وينا ثبت خپور سوی دئ، ويلي دي "عندليب ... د کندهار په عامه وبا کي مړ او په کندهار کي ښخ دئ[۲]". علامه مرحوم د کندهار يادانښتو په دوهم ټوک ۲۰۳ مخ کي د کندهار د لويه وبا تر سرليک لاندي کښلي دي، چي دا وبا په ۱۲۸۶ هـ ق = ۱۸۶۹ع کي پېښه سوې وه او په لمنليک کې زياته کړې ده: "په دغه وبا کي محمدامين عندليب د سردار غلام محمد خان طرزي زوی ۲۲ کلن مړ سو[۳]". د مرحوم غبار او علامه رشاد روايتونه په دې برخه کي سره ورته دي، چي محمدامين عندليب په ۱۲۸۶ هـ ق = ۱۸۶۹ع کال مړ سوی او د مړيني پر وخت ځوان زلمی و. خو د مرحوم غبار په حواله يې عمر اتلس کاله کېږي او علامه رشاد ۲۲ کلن بللی دئ. زما محاسبه چي د زېږېدو نېټه يې د سردار غلام محمدخان طرزي پر شعر او د مړيني دا يې د مرحوم غبار او علامه رشاد پر روايتو باندي ولاړه ده د عندليب عمر د مړيني پر وخت ۱۵ کلن رانښيي؟

علامه رشاد په هماغه ليکنه کي زياته کړې ده، چي د عندليب د ديوان يوه نسخه پخوا د کابل د ارګ په کتبخانه کي خوندي وه. ګومان کېږي اوس به دغه نسخه په ملي آرشيف کي وي. بله نسخه يې، چي د لالا محمد زمان خان په خط ليکل سوې وه، د حبيب الله طرزي په کتابتون کي

---

[۱] مير غلام محمد خان غبار په تاريخ ادبيات افغانستان کي د سردار محمد امين عندليب د زېږېدو کال ۱۲۶۸هـ ق او د مړيني کال يې ۱۲۸۶ هـ ق بللی، چي لومړی يې ناسم کال ښوولی دئ.

[۲] ميوند مجله، دويم کال، دريمه ګڼه ۳۴مخ. په دغه وينا کي د دغي وبا کال ۱۲۹۴ هـ ش ښوول سوی دئ، چي ناسم دئ او زه يې د شفاهي وينا له کسټ څخه د ناسم استخراج اغېزه بولم.

[۳] وګ: کابل مجله، ۳ کال ۷۷ مخ.

خوندي وه.

د سردار محمدامین خان عندلیب زوی سردار عبدالحبیب خان نومېدئ، چي د امیرامان الله خان په وخت کي د گرمسیر حاکم و. د سردار عبدالحبیب خان زوی سردار عبدالله جان طرزي و، چي په کندهار کي اوسېدی او تاسي به د دغي کورنۍ بیان په وروسته پاڼو کي ولولی.

د سردار محمدامین عندلیب دکلام نمونه به د مرحوم غبار له تاریخ ادبیات افغانستان څخه رانقل کړم[۴]:

خم طرازیهای آهم پیچ و تاب کاکل است
دود دل در زلف اگر پیچد سراسر سنبل است
از دهانش آرزوی دل شنیدن دور نیست
غنچهٔ گل آشیانِ ناله های بلبل است
از شکستن ساغر دل مستی سرشار داشت
در ترنگ شیشهٔ می انتقام قلقل است
شاهباز چشمت از بس بر جگرها زخم ریخت
غمزه ات بر کبک دل شاهین خنجر چنگل است
در دل از ضبط نفس مضمون رنگین نقش است
بو اگر آسوده گردد غازهٔ رنگ گل است
طرز شیرینش بصائب بسکه پهلو میزند
از قدوم طرزی ما اصفهان در کابل است
گفتگو میخواهد از دل وقت عشرت هر نفس
نغمهٔ مینای قلیان یکسراپا قلقل است
از بهار عکس گلبرگ عذارش عندلیب
کهکشان بر دامن گردون خیابان گل است

---

[۴] د عندلیب د کلام دغه نمونه د ارواښاد محمدحیدر ژوبل په (ادبیات افغانستان، ۲۷۵مخ، چاپ ۱۳۸۳ ش) کي ثبت ده. د مرحوم ژوبل او مرحوم غبار په تاریخ ادبیات افغانستان کي د موضوعاتو تداخل او ورته والی ډېر ترسترگو کېږي. دا چي کوم یو به له ها بله متأثر وي، ما ته نه رامعلومېږي.

په (ګلزار سیداحمد) نومې مجموعه کې د (غزل جناب عندلیب[٥]) تر سر لیک لاندې یوه غزله ثبت ده. د عندلیب په نامه ما ته د کندهار په محلي شاعرانو کې کوم څوک معلوم نه دئ او نه په مروجو تذکرو کې په دې نامه کوم پښتون شاعر سته. ځکه نو زه د احتیاط په قید سره دا شعر سردار محمدامین عندلیب ته منسوبوم؟ د کندهاري سردارانو د کورنۍ نورو شاعرانو هم پر ملي اوزانو باندې سپرې غزلي ویلي دي. غزله داسي ده:

ما چې لیدلی رخسار د ګلرنګ رنګ
پاته نن بیا سوله ما عار و ننګ ننګ
پرې پیکره تش غوارم وصاله
ستا د جماله، دا مې دئ حاله
تن مې تسوله په وینو کې رنګ رنګ
مخ دې مهتاب په حجاب دئ له مانه
سینه سوزانه، زه یم حیرانه
خېژي نارې مې له خولې څخه رنګ رنګ
مخ دې روښانه زیبا تر آفتابه
زې کړم بېتابه، نه سوم کامیابه
لکه مجنون پر صحرا اوسم رنګ رنګ
اور د هجران دئ زړه مې سوزان دئ
په سره انګار کې تسوله بریان دئ
زه عندلیب چې همېش یم په سونګ سونګ

سردار غلام محمد خان طرزي پخپل دیوان کې د خپل دغه زوی (عندلیب) په جواب کې ډېرې غزلي لرې[٦].

---

[٥] ګلزار سیداحمد د کندهار د محلي شاعرانو د مقامي غزلو یوه مجموعه ده، چې د ارواښاد سید احمد بېزار په همت راغونډه سوې ده. په دغه مجموعه کې د عندلیب له نامه سره د (جناب) لقب تړل سوی دئ. په دې مجموعه کې دا لقب یو څو محدودو شاعرانو ته ورکړه سوی دئ.

[٦] وګ: د دېوان ۳۷۷، ۴۵۸، ۴۷۰، ۴۷۹، ۴۸٦، ۴۹۷، ۴۹۹، ... مخونه.



سناتور سردار عبدالله جان طرزي

## د کندهار د سناتور سردار عبدالله جان طرزي کورنۍ



# د سردار مهردل خان مشرقي کورنۍ

سردار مهردل خان مشرقي[۱] په کندهاري ورونوکي تر ټولو کشر ورور و، چې د ۱۲۱۲هـ ق کال په محرم میاشت (جون ۱۷۹۷ع) کې په کندهار کې زېږېدلی او د ۱۲۷۱هـ ق کال د جمادی الثاني پر ۲۷مه د جمعې په ورځ (۱۸ مارچ ۱۸۵۵ع) د ۵۹ یا ۵۸ کالو په عمر هوري مړ سوی او د حضرت جي بابا په زیارت کې ښخ دئ.

سردار مهردل خان له خپلو ورونو سره په ټولو نظامي او ملکي چارو کې مل و، خو پر کندهار باندې یې په یکړ سر واکمني نه ده کړې.

د سردار پاینده خان مشر زوی وزیر فتح خان چې د سدوزي شاه محمود په پاچهۍ کې خپل ورونه د افغانستان پر بېلا بېلو سیمو باندې د حاکمانو په توګه ټاکل، سردار مهردل خان او پردل خان ته یې کندهار او د هغه ملحقات، له کلات څخه تر بولان درې او فراه پورې ورکړل[۲].

د کابل د نیولو په جنګ کې د سردار مهردل خان آس ټپي سو او دی له آسه راولوېد، د دوست محمد خان لښکرو ونیو او بندي یې کړ[۳]. دا جنګ د نواب عبدالجبار خان په منځګړیتوب سره پای ته ورسېد او بارکزي ورونه د ټول افغانستان د وېشلو پر سر موافقې ته ورسېدل.

---

[۱] سید مسعود پوهنیار په (ظهور مشروطیت و قربانیان استبداد در افغانستان، ص ۲۳) کې لیکي، چې سردار حسن خان سیاه په شعر کې (مشرقي) تخلص کاوه. سردار محمدحسن خان سیاه د احمد قلیخان زوی، د وزیر فتح خان لمسی او د سردار پاینده خان کړوسی و. د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې د کندهاري ورونو په پراخه کورنۍ کې د درناوي وړ مشر و. د سردار محمدداود د صدارت په وخت (۱۹۵۹ع) کې د کندهار والي محمدصدیق خان وزیري د همدغه سردار حسن خان زوی و. خو دا چې سردار حسن خان دې شعر وایه او بیا دې په شعر کې (مشرقي) تخلص کاوه، د غور وړ خبره ده.

[۲] تاریخ مختصر، ۲۸۰مخ.

[۳] سراج ۱/ ۱۴۷مخ.

سردار مهردل خان په هغه لښکر کي هم شامل و، چي د سردار پردل خان په مشرۍ له کندهاره دکابل پر لور وخوځېدی او مراد له امیر دوست محمدخان سره جګړه کول و[۴]. کندهاري سرداران دې جګړې ته د امیر دوست محمد خان د زوم سردار سلطان احمد خان په غوښتنه حاضر سوي ول. سردار سلطان احمدخان له خپل خسر څخه خوابدی سوی و او له خپلو کندهاري اکاګانو (ترونو) څخه یې د مرستي غوښتنه کړې وه. د سردارانو مقابلې ته له کابل څخه د امیر دوست محمد خان لښکر د ده د دوو زامنو سردار غلام حیدر خان او سردار محمداکبرخان په مشرۍ را ووتل. دواړه لښکري په مقر کي سره مخامخ سوې. په دغه وخت کي په لښکرو کي د وبا (کولرا) ناروغي ګډه سوه. هره ورځ له دواړو خواوو څخه په سوو تنه مړه کېدل او ژوندي یې په ښخولو باندي نه رسېدل. په پای کي دواړه لښکري بې له جنګه خپلو مرکزونو ته تر شا سولې او جوړه سره وسوه، چي کندهاري وروڼه به د کابل په چارو کي لاس نه وهي او امیر دوست محمدخان به د کندهار په سیمه کي مداخله نه کوي[۵].

سدوزي شاه شجاع چي له رنجیت سنګه سره تر موافقې وروسته پر کندهار برید وکړ او دغه ښار یې کلابند کړ (۱۲مارچ ۱۸۳۴ع)[٦]، کندهاري سردارانو د ښار دفاع او مقابله پیل کړه او له کابل څخه یې دوست محمد خان مرستي راوباله. په دغه جګړه کي سردار مهردل خان هم شامل و او په ښار کي یې د خپلي قطعې مشري کوله. د کندهار دې کلابندۍ څه دپاسه پنځوس ورځي دوام وکړ. د کلابندۍ په پنځوسمه ورځ سردار مهردل خان مشرقي د خپل ورور کهندل په امر تر ښار ور ووت او د شاه شجاع پر لښکرو یې چي په سرپوزه او ده ماسوس کي پرتې وې، زړه ور بریدونه

---

[۴] مهدی فرخ په تاریخ سیاسی افغانستان، ص ۲۱۸ کي د دې لښکر مشر سردار کهندل خان بللئ دئ؟

[۵] سراج ۱/۱۵۱مخ.

[٦] د افغانستان په تاریخي پېښلیک کي د دغي پېښي نېټه (۱۲مارچ ۱۸۳۴ع) د ۱۲۵۰هـ ق کال د محرم له لومړۍ سره برابره بلل سوې ده. خو په تقویم تاریخي کي د دغه کال د مارچ دوولسمه د ذی القعدې د میاشتي لومړۍ ورځ (چارشنبې) ښوول سوې ده.

وکړل او ټوله ورځ يې په جنګ تېره کړه څو چي شپه پر راغله او بير ته ښار ته ننوت. کندهار ته د سردار دوست محمد خان د لښکرو تر رارسېدو دمخه کندهاري سرداران له ښاره ووتل او تر ښار دباندي يې خپل مورچلونه جوړ کړل. سردار مهردل خان تر ښکاپر دروازې دباندي خپله قطعه د شاه شجاع د لښکرو په وړاندي ځای پر ځای کړل. کندهار ته د دوست محمدخان په رسېدلو سره ذ جګړې موازنه د سردارانو په ګټه بدله سوه. دوست محمدخان او سردار کهندل خان د توپخانې په دروازه کي سره وکتل او د جګړې پلان يې جوړ کړ، چي په نتيجه کي يې د شاه شجاع لښکرو ګټلې جنګ بايلوو او شاه پخپله سيستان ته وتښتېد(۷).

کله چي شاه شجاع دوهم وار د انګرېزي لښکرو په ملګرتيا د سند او بولان له لاري پر کندهار بريد وکړ (فبروري ۱۸۳۹ع)، کندهاري سرداران د مقابلې له پاره تر ښار دباندي فتح الله کلا ته ورووتل(۸). په دغه مقابله کي

---

(۷) په دغه جنګ کي د شاه شجاع په لښکرو کي د (Campbell) په نامه يو انګرېز افسر هم شامل و. ګاډفرې (Godfrey T.Vigne) انګرېز، چي په ۱۸۳۶ع کال په کابل کي حاضر و، پخپل کتاب ( A personnal narrative of a visit to Gazni,Kabul ,and Afghanistan) ۱۷۵ – ۱۷۶ مخو کي له نوموړي کيمبل سره د خپلي کتني او د ده له خولې له شاه شجاع سره له لودهيانې څخه د خپلي ملګرتيا او د کندهار په عباس آباد کي له کندهازي سردارانو سره د شاه شجاع د جګړې او ماتي په باب تفصيلي يادونه لري. دی د کيمبل له خولې ليکي چي "نوموړی په دغه جګړه کي ټپي سو او قطعې يې ۶۸ تنه تلفات ورکړل. دی پخپله په يوه کرونده کي پروت و، چي د سردار مهردل خان له نوکرانو څخه يو تن پر پېښ سو. دې سړي، چي مير اکبر نومېدی، کيمبل له ځانه سره خپل کور ته بوت، ټپونه يې ورپرېولل او يوه هفته يې وساته. تر يوې اوونۍ وروسته امير دوست محمدخان له کيمبل سره وکتل. امير ډېر ونازاوه، خپل زوی يې وباله او کابل ته يې له ځان سره بوت. هورې يې د يو څو توپو د قوماندان په توګه مقرر کړ او د مياشتي يې څلور سوه روپۍ تنخواه ورته وټاکله". کيمبل وروسته مسلمان سو، شيرمحمد نوم پر کښېښوول سو او د سردار عبدالرحمن خان (وروسته امير عبدالرحمن) روزنه ور وسپارله سوه.

(۸) مهدی فرخ پخپل تاريخ ۱۷۳مخ کي دغه ځای (قلعهٔ فتح خان) بللی دئ، چي ناسمه نومونه ده.

سردار مهردل خان مشرقي هم له خپلو نورو ورونو سردار کهندل خان او سردار رحمدل خان سره یو ځای شامل و. کندهاري سرداران د دې مقابلې تر عهدې ونه وتل او په ماته یې له خپلو کورنیو سره ایران ته پناه یووړه او شاه شجاع د انګرېزي لښکر په مرسته د کندهار پر تخت باندي کښېنوست (دوشنبه ۱۳ د صفري ۱۲۵۵هـ ق = ۲۹ اپریل ۱۸۳۹ع)[۹].

د امیر دوست محمدخان د دوهم وار پاچهی په لسم کال (۱۲۶۹هـ ق) کي د کلات توخو او هوتکو پاڅون وکړ او امیر دوست محمدخان خپل زوی سردار شېرعلیخان د هغوی ځپلو ته واستاوه. سردار شیرعلیخان تر زیاتو تلفاتو وروسته په داسي حال کي چي پخپله یې هم په پښه کي ټپ اخیستی و، د کلات پر نیولو بریالی سو، د کلات د شاوخوا سیمو مالیه یې راغونډه کړه او کابل ته یې یووړه. په کندهار کي پر سردار کهندل خان باندي د امیر د زوی دا سوبه درنه تمامه سوه او هغه یې پخپل قلمرو کي د دوست محمد خان لاسوهنه او د افغانستان د وېشلو پر سر د دوی تر منځ له لاسلیک سوي تړون څخه سرغړونه وګڼل. خپل کشر ورور سردار مهردل خان یې له څلورو زرو تنو او څو توپو سره یو ځای د کلات د کلا ټینګولو ته واستاوه. امیر دوست محمدخان چي د سردار مهردل خان په راوړاندي کېدلو خبر سو، سردار شېر علیخان ته یې بیا امر وکړ، چي له غزني څخه پر کلات باندي وروړاندي سي. د سردار شېر علیخان لښکرو ته د سردار مهردل خان له خوا د توپونو په ډزو جواب ورکړه سو او په دې ډول یې وښووله چي د کلات مدافعه به په هره بیه چي وي وکړي. امیر دوست محمد خان چي د سردارمهردل خان په مقاومت خبر سو، له کابل څخه یې د خپلو نورو ورونو نواب عبدالجبارخان، سردار سلطان محمدخان، سردار پیرمحمدخان او سردار سعیدمحمدخان په ملګرتیا مخ پر کلات راونیو. له دې خوا سردار کهندل خان د خپل ورور سردار مهردل خان مرستي ته ور رهي سو. کلات ته د دواړو مرستندویو لښکرو تر رسېدو وروسته د بارکزیو ورونو تر منځ بیا جوړه وسوه، د کلات کلا یې ورانه او امیر دوست محمدخان، که څه هم په دې جوړه راضي نه و، خو د نواب

[۹] په تاریخي پېښلیک کي دا نېټه د اپریل ۲۰ مه ښوول سوې ده، چي چاپي تېروتنه ده.

عبدالجبارخان په غوښتنه یې لښکر بیرته کابل ته او سردار مهر دل خان او کهندل خان خپلي قواوي کندهار ته پر شا کړلې.

سردار مهردل خان مشرقي د پښتو او فارسي ژبي پیاوړی شاعر و. په فارسي ژبه یې د هند پر سبک شاعري کوله او دېوان یې پاته دئ، چي نژدې پنځه زره بیته کېږي. دغه راز یې د مولانا جلال الدین بلخي د مثنوي شریف د دوو بیتو شرح یې هم د مثنوي په قالب کي نظم کړې ده، چي زر بیته کېږي او شرح بیتین یې نوم پر ایښی دئ[۱۰]. شارح غوښتل چي د مثنوي شریف د دوو بیتو شرح د مثنوي شریف په بحر کي بیان کړي خو خبره ځیني اوږده سوې ده او تر (قصهٔ شاه وکنیزک) پوري یې د مثنوي شریف د سر ټول بیتونه په نظم شرحه کړي دي.

مشرقي په تصوف کي یوه رساله د جمع الجمع په نامه لیکلې او د میا عبدالحکیم کاکړ د اشارات او رموزات شرح یې هم کښلې ده[۱۱] علامه حبیبي لیکي، چي مشرقي په حقیقت کي د بیدل د دبستان او هندي سبک پیرو دئ، خو مثنویاني یې د مولانای روم کیف او خوند لري[۱۲].

د مشرقي کور د هغه وخت د عالمانو او ادیبانو د راغونډېدلو مرکز و. په دغه مرکز کي د پښتو پیاوړي شاعران لکه میرزا حنان بارکزی، حاجي عبدالله پوپلزی، حاجي جمعه بارکزی، ملا میران، صدیق اخندزاده هوتک، سردار غلام محمدخان طرزي او نور معاصر ادیبان راغونډېدل. سردار مهردل خان د خپل وخت له وتلو عالمانو لکه علامه حبیب الله کاکړ (حبواخندزاده) او قاضي غلام محمد هوتک سره هم علمي او عرفاني تعلقات درلودل. علامه حبو اخندزاده خپل یو اثر نقدالثقات فی التزئیف الموضوعات د نوموړي سردار مهردل خان په غوښتنه کښلی دئ[۱۳]. کشمیری موهن لال چي غالباً یې له سردار مهردل خان سره لیدلي دي، د ده

---

[۱۰] شرح بیتین د علامه حبیبي په زیار ترتیب سوې او له سریزي سره یو ځای په ۱۳۵۲ ش کال په کابل کي خپره سوې ده.

[۱۱] شل مقالې، ۴ برخه، ۶۱ مخ.

[۱۲] هماغه اثر، هماغه مخ.

[۱۳] درنه کورنۍ، د لیکونکي لیکنه، ۲۳ مخ.

په باب لیکي چي له کندهاريو سردارانو څخه مهردل خان د نورو وروڼو په نسبت د سواد له مخي لوړ و. دی شاعر و او خپل اشعار يې پخپله لیکل. مهردل خان د خپل ادبي ذوق له امله په ایران کي هم شهرت ګټلی و[۱۴].

له بده مرغه د سردار مهردل خان مشرقي پښتو اشعار دومره زیات په واک کي نه لرو. د ده دپښتو شعر يوه نمونه واردواره په تذکرة الشعراء کي (غالباً د مولوي صالح محمد هوتک په قلم) ادبي نړۍ ته وړاندي سوې ده او پښتانه شعراء (۲ټوک) هم اخیستې ده چي وبه يې لولو:

پلـــــو واخلـــــه لهسـپوږمۍ مخه مېرمني
ستا بې مخه راتـــــه شپې دي ورځي سپيني
سـتا له وره تللای نهٔسـوای هـــــوري دوري
درته ناست يــــم په دربار پرې مي دي سپيني
درست بدن مي د بېلتون پــــه اور کښي وريت سو
په کـــــوګل کښي مي ويلېږي توري سـپيني
راته وګوره رقيب سپک په څه شـــــان کړم
خدای دې سپک کړي ستا په مخ و دې وزي سپيني
زه پښـــتون يــــم نه وېرېږم لـــــه رقـيبه
ورته وبه کــــرمه بيا ښې سپيني سـپيني
"مـشرقي" دي پـــــه تياره د بېلـتون ژاړي
ورته لمر د مخ ښکاره کــــړه په مخ سـپيني[۱۵]

اروانښاد غبار په تاريخ ادبيات افغانستان ۲۹ مخ کي وايي، چي د سردار مهردل خان مشرقي د فارسي ديوان يوه نسخه د افغانستان د شاهي دارالتحرير په کتابخانه کي خوندي وه. زما (هوتک) په ګومان به ښايي اوس په ملي آرشيف کي وي. نوري نسخې يې هم له ځانګړو اشخاصو سره سته. زما مخې ته همدا اوس د ښاغلي حمدالله صحاف په خطي کلکسيون کي د سردار مهردل خان مشرقي د فارسي ديوان فوټوکاپي پرته ده، چي سږکال صحاف صاحب په مينه له کويټي بلوچستان څخه کاناډا ته زما د

---

[۱۴] زندګی امير دوست محمد خان امير کابل، فارسي ترجمه، ۱۹۷مخ.
[۱۵] دا نيم بيتي په تذکرة الشعراء (۱۴۸مخ) کي نيمګړی دئ: ورته مخ ښکاره کړه په مخ سپيني.

غوښتني له مخي رالېږلې ده. د دې نسخې ټول مخونه ۳۱٦ ته رسېږي او قطع يې متوسطه ده. په نسخه کي د دال تر ردیف وروسته (يعني تر ۲۵۸مخ وروسته) د میم او نون ردیفونه راغلي دي، چي ټول ۲۷ مخه کېږي. د نون پر ردیف باندي د غزلیاتو برخه پای ته رسېږي او ورپسې رباعیات پیل سوي دي. د رباعیاتو برخه وروسته ورلوېدلې ده، چي د کندهاري سردارانو د کورنۍ د هنرمند خطاط (محمدزمان جان) په کتابت ورلوېدلې ده. د رباعیاتو برخه ۲۱مخه ده او پای يې پر دغه عبارت باندي بشپړ سوی دئ. "تمام شد بعون الملک الوهاب رباعیات مرحوم جنت مکان سردار عالي سردار مهردل خان که المتخلص بمشرقی. این رباعیات بدست محمدزمان جان".

تر رباعیات وروسته حکایات پیل کېږي چي ټول نهه مخه دي. دا حکایتونه د مثنوي په قالب کي د سردار مهردل له خوا په نظم ويل سوي دي. نسخه په ښکلي نستعلیق خط کښل سوې ده او د لیکلو نېټه يې څرګنده نه ده. څرنګه چي اصل نسخه ما نه ده لیدلې، ځکه يې نو د کاغذ نوعیت او د هغه له مخي بیا د نسخې د زړتیا په باب څه نه سم ویلای. دومره راته څرګنده ده، چي د رباعیاتو برخه يې د سردار مهردل خان تر مړيني (۱۲۷۱هـ ق = ۱۸۵۵ع) وروسته لیکل سوې ده.

د نسخې پیل داسي دئ، تر بسم الله وروسته:

ای شفا بخش دل غمدیدهٔ بیمارها<br>
دارد از دستت دوا نبض رگ ازارها<br>
ساز عشرت چون نوازد نغمهٔ سوزد نشاط<br>
گفتگو دارند در حمدت زبان تارها

او د پای بیت يې:

بی حب این چاریار مصطفی باشد غلط<br>
از نبی چشم شفاعت روز محشر داشتن

دا وروستی نیم بیتی يې بیا په څنډه کي داسي اصلاح کړی دئ:

از نبی ای مشرقی چشم شفاعت داشتن

د سردار مهردل خان مشرقي د فارسي کلام ښه ډېره برخه د وطن یاد، د بېلتانه سختي او د دنیا بې وفاتوب ته وقف سوې ده. داسي ښکاري

چي د اشعارو ډېره برخه يې له خپل پلرني هيواده ليري ويلې ده. يو شمېر نمونې به يې ولولو:

بسکه از شور دو عالـــم درد سر داريم ما
زاضطراب هستي خـــود کی خبر داريم ما
روزگاری شـد که اندر وادی صحرا بشوق
رفته از خويشم و ســـودای دگـر داريم ما
آب چشم از ديدهٔ خـــونبار ريزان هـر نفس
زانفعال هستي خـــود چون ســحر داريم ما
تا قـيامـــت شب نگيرد دامن صـبح اميد
گـــر نقاب از ماه روی خـويش بر داريم ما
مشرقی از سيل چشم خون فشان ما مپرس
مــوج طـــوفان دگر از چشم تر داريم ما
(خطي نسخه ۲۷ مخ)

***

تا برده صبا نگهت زلـــــفت بچـمن ها
بر مشک ختن طــعنه زده بوی ســمن ها
در باديهٔ عشـق شـــهيدان غـــم تو
گلگون چو گل از خـــون جگر کرده کفن ها
چون غنچه مخند از سر شادی که درين باغ
بر خاک بسی دور فلـک کـــرده دمن ها
هـــر نو گل خندان بگلستان شده عمری
کز لعل تو دارد هـــوس درس سـخن ها
ای خام! هـــوس نخـل تمناش بلند است
کس را نبود دســـــترس سيب ذقـن ها
گـــوشی نبود تا شنود رمــز مـعانی
داريم چـــو گل در لب خـاموش سخن ها
چون "مشرقی" از منزل مقصود چه گويم
کاشـــفته دمـــاغيم بسودای وطن ها
(خطی ۳۷ مخ)

سرو آزادست گـــویا مصرع مـــوزون ما
بوی گل شـــد منفعل از نگهت مضـــمون ما
زاده شد چون کهربا گوهر زخجلت در صدف
تا بیرون از بحر دل شد گـــوهر مکـــنون ما
میتوان دانست خـــاک بیکـــسان از داغ دل
لاله شـــمع روشـــن است برتربت مجـــنون ما
یک سرمـــــو باخـــبر از نشۀ معـــنی نشد
گر بخون چون داد می بنشـــست افلاطـــون ما
زخـم هـــا بر دل زنوک ناوک مژگان کیست
کین چنین گلگون شد از خون دلم هـــامون ما
چاره ام نبود بغیر از جان سپاریهای خـــویش
لشکر غـــم "مشرقی" بگرفـــته پیرامون ما
(خطی ۳۹مخ)

***

برق آهـــم سوخت امشب سبزۀ کشـــمیر را
آب چشمم کرد ویران خـــانۀ تعـــمیر را
ماه من در مکتب چشم سیاهت روز و شب
نیست جـــز درس تـحیر دیدۀ نخـــجیر را
باغبان مـــن بیا از سعی بیـــجا دست کش
آب نتوان داد هـــرگـــز غنـــچۀ تصویر را
معصیت گر کردۀ واعظ نخواهم روســـیاه
سرخ روگشـــتم چو نوشیدم می تقصیر را
ما که با پیریم از رنج دو عالـــم رستـه ایم
ای صبا برگو حـــکایت مـــردم بی پیر را
"مهردل" تا چند گـــردی بهرروزی دربدر
کس دگر گـــون کی تواند نســـخۀ تقدیر را
(خطی ۷۱مخ)

همین نه غمزۀ مژگان ســـاز خـــونریز است
که چسم مست تو هم شوخ فتنه انگـــیز است

پی عـــــلاج دل دردمند چـون گل شـد
عتاب خـندهٔ آن شـــوخ ترک آمـیز است
چه حـاجت است اشارت بـه تیغ ابرویت
ترا که خنجر مـــژگان بقـتل من تیز است
بگــــو صــبا زمن آن مست جام عشرت را
بیا که ساغـــرم از خون دیده لـبریز است
زبانگ بوالـــــهوسـیها اثر نمی خیزد
چه شد خروس صفت عابدار سحر خیز است
مـــــراهمـین شده روشن زتاب طـره او
که چین بچـین خم هـر تار من دلاویز است
تـو مهر عصرخودی "مشرقی" درین عالم
اگـر چه خـــاور تبریز شمس تبریز است
(خطی ۲۰٦مخ)

## و من رباعیاته

مشرقي په رباعیاتو کي د تصوف پرله پېچلي مفاهیم ځای کړي دي:

واعظ به فـغان گفت که راهی دین است
عابد بسجود شــــد که آئین این است
هریک زیقین خـــود سـخن میگفتند
عارف شده خاموش که مردی این است
(خطی ۲۹۴مخ)

گر شاه و گــر غنی و گـر درویش است
از حسرت جان کنی هـمه دلریش است
دنیااست نه جـای راحت ای بیخـبران
کــین منزل مـوت جمله درپیش است
(۲۹۷مخ)

صورت بحقیقت اوست مرآت اینست
خـورشید عیان گشته و ذرات اینست
بیهـــوده چه اندر پی نفی خـویشی
خـــود رابشناس عین اثبات اینست

(۲۹۷مخ)

از هستی خــود شدن خبر بیخبری است
خــود را بمیانه دیدن از بی بصری است
لیلی صفت از حــجاب خــود بیرون شو
حسنت که بسی فزونتر از حسن پری است

(۲۹۸مخ)

ای لاله ترا که لاف ازمن زدنی است
برآتش داغ خــویش دامـن زدنیست
در هــر نفسی زبان درازی که کنی
چون شمع تراهـوای گردن زدنیست

(۲۹۹مخ)

دایم زتـــوحل این معـما نشود
این عـــقده بناخن هـوس وانشود
دانستن اوکار توئی های تونیست
بی مـــا نشود و لیک بی ما نشود

(۳۰۴مخ)

## حکایت

شنیدم یکی مـــرد بارای وهوش
همی گفت در بـــزم باشمع دوش
که ای روشـــن ازنور تو بزم هـا
تـــرادرته پاست ظلـمت چـرا
چوشـــمع این سخن راز دانا شنید
ازین طـعنه اش نیش بر دل رسـید
زبانی زشـــعله برآورد گفت
بمعنی چنین گـوهزی رابسُفت
چو از نـور من انجمن روشن است
چه غم گـر مرا در بظلمت تن است
خوشم هـــر نفس گرمرا سر رود
که ازشـــعله ام بزمٌ روشـن شـود
سـراپا همی سوزم از بهـــرآن
که کلفت شود محـــو از دیگران
نه ازسایهٔ خـــویش دارم خـبر
نه بیمی مـــرا باشد از قـطع سر
توهم کن طلب ازمن ای پاک کیش
پی راحت دیگـــران رنج خـویش
زشمعی بیا "مشرقی" یـــاد گیر
درین بـــزم این نکتهٔ دلـپذیر

(۳۰۸مخ)



د شرح بیتین د خطي نسخې لومړی مخ

د شرح بیتین دیوې خطي نسخې فوټوکاپي هم د ښاغلي حمدالله صحاف له کتابتون څخه د نوموړي په پېرزوینه تر ما پورې رارسېدلې ده. نسخه په دې بیتو پیل سوې ده :

ابتدای نـــام دانای قـــدیم
شـــدزبسم الله الرحـمن الرحیم
ذات پاک اوزبس بیچـــون بود
شرح اوصـــافش زحـد بیرون بود
قـل هـــو الله آیتی در شـــان او
زانکه وصف خویش گوید خود نکو
بر بزرگی جـــلال و بـــرجـمال
خـــودبخود زیبد ثنای ذوالـجلال
زان زبان ناطـــقه گـــردید لال
در ثـــنای ذات پاک ذوالجـلال
تانگـــوید خود ثنای خـویشتن
می نیاید وصف او ازمـــا ومـن
زان سـبب دروصف ذات کـبریا
شـــد دلـیل عجـزلا احصی ثنا

تر دې وروسته وايي: "... چنین گوید ذرهٔ بیمقدار خاکسار بستهٔ اغلال وسلاسل تعلقات این عالم آب و گل اعنی مهردل بسمع ملازمان کمال کامل که مهر دل از تنعمات ذخارف عاجل بر تافته، بتحصیل سعادات آجل شاغل ومایل شده اند، میرساند، مدتی میشود که خوشه چینی خرمن این طایفهٔ علیه یعنی صوفیه را که فی الحقیقت فرقهٔ ناجیه ایشانند، مینماید و بحکم من تَشَبَهُ بِقَومٍ فَهُوَمِنهُم امیدکه بواسطهٔ پیروی ایشان بایشان محسوب ومحشورشود. درین زمان باستصواب رای موافق واستدعای احباب صادق اتفاق افتاد که بر بیتین مثنوی مولوی معنوی شرحی بقدر وسع برهمان بحر در سلک نظم آورده شود. بعد ازان حصول این مامول چون دَرمعنی باز بود لاجرم سلسلهٔ سخن دراز شده تاآنکه تمامی ابیات آنجناب راتا ابتدای قصهٔ شاه وکنیزک باتمام رسانیدم بعونه وتوفیقه. سوال از جناب ارباب قبول آنکه اگر سهوی و خطایی مطلع شوند در اصلاح

آن کوشند و پردهٔ عفو پوشند".

او د کتاب خاتمه په دې عبارت سره پای ته رسېدلې ده:

"تمت تمام شد بعون الملک عنان من تصانیف عالیجاه رفیع جایگاه سالم مسالک الشریعت واقف مواقف حقیقت مظهر انوار الفضل و الاحسان سردار مهردل خان محمدزائی قندهاری غفرذنوبه درشرح ابیات دیباجهٔ مولانای روم قدس سره".

د نسخې د کاتب نوم او د استنساخ نېټه يې ځرگنده نه ده. خط يې ښکلی نستعليق دئ او په سر کي يو میناتورهم لري. تر اویا مخو پوري يې هرمخ چوکاټ سوی دئ خو وروسته بیاچوکاټ نه لري. لکه وړاندي چي مي وويل، دانسخه داصل نسخې کاپي ده، ځکه نو د کاغذ نوعيت نه رامعلومېږي. ماته داسي ښکاري چي تر اویایم مخ وروسته برخه د بل کاتب په قلم وروسته ورلوېدلې ده خو د دې دوهم کاتب خط لومړي کاتب ته، چي ډېر ورته دئ او د لومړي کاتب پر خط باندي بيا د سردار محمدزمان خان طرزی د لیک گومان کېدلای سي؟ لکه سردار مهردل خان چي د دې شرحي په پیل کي ویلي دي، دا شرحه د مثنوي شریف د دیباچې منظومه شرحه ده. د مثنوي شريف دیباچه ټوله پنځه دېرش بیته ده[16] د سردار مهردل خان مشرقي په شرحه کي د مثنوي شريف د دیباچې له وروستي بيت پرته، چي هغه په حقیقت کي د (قصهٔ شاه وکنیزک) له پاره ويل سوی دئ، نور ټول ۳۴ بیته شرحه سوي دي.

وروستی بیت، چي مايې وړاندي يادونه وکړه، په چاپي مثنوي کي داسي دئ:

بشنوید ای دوستان این داستان
خود حقیقت نقد حال ماست آن

د ۱۷ او ۱۸ بیتو شرحه راغلې ده خو پخپله بیتونه جنساً نه دي رانقل سوي. هغه بیتونه دا دي:

هر که جز ماهی زآبش سیر شد
هر که بی روزی است روزش دیر شد

---

[16] وگ: مثنوی معنوی مولوی از روی طبع نیکلسون، چاپ ششم ۱۳۸۰ ش، ص ۵ ـ ۶، تهران.

در نیابد حـــال پخته هیچ خـام
پس سـخـن کـــوتاه باید والسلام

په دې شرحه کې ځيني مشروح بيتونه له چاپي ثبت سره توپير لري او په دې ډول دي :

خطي :

کز نیستان تا مرا ببریده اند
از نفیرم مرد و زن نالیده اند

چاپي :

کز نیستان تا مـرا ببریده اند
در نفیرم مرد و زن نالیده اند

خطي :

من بـــهر جمعیتی نالان شـدم
جفت خوشحالان و بد حالان شدم

چاپي :

من بـــهر جمعیتی نالان شــدم
جفت بد حالان و خوش حالان شدم

خطي :

هر کسی از ظـن خود شـد یار من
ور درون من نجست اســرار من

چاپي :

هر کسی از ظن خـود شـد یار من
از درون من نجـست اسـرار من

خطي :

نی حـریف آنکه از یاری برید
پرده هایش پرده های ما درید

چاپي :

نی حریف هر که از یاری برید
پرده هایش پرده های ما برید

دلته به د دې خبرې يادونه بې ځايه نه وي، چي سردار مهردل خان مشرقي ولي له ټول مثنوي څخه يوازې د هغه ديباچه په دې ارزولې ده، چي شرحه دې پر وکاږي؟ مشرقي‌له مثنوي شريف سره مينه درلوده او ځکه يې هغه په دقت سره په وارو وارو کتلې و. ده ته دا خبره ثابته سوې وه، چي د مثنوي شريف په دغه پنځه دېرش بيتيزه ديباچه کي په حقيقت کي د رومي مولانا د افکارو او عرفان ټول روح پروت دئ. مولانا ته د هغه وخت د علمي کړيو دا دود (رواج او دستور) ورمعلوم و، چي ديوانونه او د نظم و نثر کتابونه د کبريا ذات ﷻ په حمد او د خدای د سپيڅلي استازي ﷺ په نعت باندي پيل کېدل. خو ده خپل مثنوي په همدې ديباچه ځکه پيل کړی دئ، چي د ده په ديباچه کي راغلی (نی) هماغه روح دئ چي عارفان يې د (هو) په مفهوم کاروي. د مشرقي مرحوم په دغه عارفانه باريکۍ ښه پوره سر خلاص و او د همدې ديباچي په شرحه کولو سره يې په عرفان، تصوف او شعر کي د خپلي پياوړې برلاسۍ ثبوت وړاندي کړی دئ.

زه به د دې بحث په پای کي له شرح بيتين څخه هغه برخه راواخلم، چي مشرقي پکښې د خپل نامه (مهردل) شرحه بيان کړې ده. د خطي نسخې د دې برخې په پيل کې کښلي دي :

### در اشعار اشارت بسوی اسم خود به کنایت و ایهام

| | |
|---|---|
| باز میخواهم کنم ای دوستان | شمهٔ از شرح مهردل بیان |
| مهر او تا دردلم شد جلوه گر | مهر غیرش را ز دل کردم بدر |
| دل اگر از حرف مهرش دم زند | از دم آتش شعله در عالم زند |
| دل چسان از مهر او گوید سخن | گر چه مهرش کرده اندر دل وطن |
| مهرش از شرح و بیان بیرون بود | در بر دل لیک دل پر خون بود |
| میم مهر از میم احمد شد عیان | کی توان از میم او کردن بیان |
| گر چه میم آمد ظهور ماومن | لیک فارغ باشد از شرح سخن |
| میم موجودات در میمش نهان | از طفیلش هر دو عالم شد عیان |
| در حقیقت میم معشوقست و بس | لیک ناید این سخن در فهم کس |
| نقطهٔ میم از الف کرده ظهور | که انا النوری و عالم گفته نور |
| آنچه او زانوار نور واحد است | کنت وکنزاً بر ظهورش شاهد است |
| گشت ظاهر چون تجلی جمال | نورِ احمد یافت از نورش کمال |

شد کلیم از میم احمد در سخن — کرده از نورش مسیح دعوی من
میم آدم از ظهور میم اوست — هم نجات نوح از تعظیم اوست
از ظهور نور احمد کردگار — بر خلیل الله گلستان کرد نار
نور هم از نور مهرش نور یافت — ذرهٔ زان نور هم بر نور تافت
هر چه هست از خوب و زشت و از نکو — جمله را می دان ظهور از نور او
ها چو چشمی بر رخ مهرش کشاد — از الف بر دیده اش میلی نهاد
چشمها عاجز شد از نور جمال — محو عجز خویش شد از اتصال
از دو بینی میم را چون (ها) بدید — از الف بر دیده اش نشتر کشید
در بر میم است از خود بیخبر — از دو بینیهاست بر میمش نظر
اختیارت گر بذات مطلق است — این صفت باشد بمعنی کی حق است
تا ز ها باشد نشان اندر میان — کی توان ره برد سوی بی نشان
این دو چشم ها که از هم جداست — گه سوی وحدت بود گه سوی ماست
این دو چشم ها اگر (دو) چشم ماست — یک همی بیند اگر از هم جداست
از دو بینی دیده نامحرم بود — دیده نابیناست نورش کم بود
ریخت از نوار الف در چشمِ ها — از دو بینی های خود بینی سیاه
مهر بی ها، ناقص آمد ای پسر — لیک او را نیست از وصلش خبر
ها که از پندار خود گردید دور — هست اندر قرب دائم در سرور
نور را با دیده باشد اتصال — دیده زان نور است غافل ماه و سال
گر ز نور خویشتن بودی خبر — کی بحسن دیگران کردی نظر
عشق میگوید ده این سِر را ظهور — تا نیفتد حاجتی بسا نفخ صور
عقل میگوید که این سِر را مگو — تا نگردد در جهان حشری از او
عشق میگوید بگو سِر قدم — تا از او گردد همه عالم عدم
عقل میگوید مگو سِر ای امین — تا نگردد عالم از مستهلکین
عشق میگوید بگو راز الست — تا شود عالم همه بی پا و دست
عقل میگوید که سِر را بپوش — تا از او زائل نگردد فهم و هوش
عشق میگوید چنین عقل آنچنان — رحم کن، رحم ای خداوند جهان
گر نباشد لطف تو ای کردگار — سر زند این سِر ز من بی اختیار
گر نباشد لطف تو ای رازدان — گردد این راز نهان بر من عیان
گر نگردی مهربان ای کارساز — بیگمان از من شود افشای راز

مصطفی گفت آنچه در گوش علی — نی همی گوید بآواز جلی
لیک کس را گوش آن اسرار نیست — فهم آن سر کار هر بیکار نیست
گر نبودی مهر شرعم بر دهان — گفتمی فاش آنچه نی گوید عیان
منع میسازد مرا آن شرع پاک — تا نگردد جملهٔ عالم هلاک
گر بگویم سر پنهان برملا — در زمان عالم همه گردد فنا
سر پنهانست اندر زیر و بم — فاش گر گویم جهان برهم زنم

**لکه وړاندي چي ویل سوي دي، سردار مهردل خان مشرقي د ۱۲۷۱ هـ ق کال د جمادی الثاني پر اووه ویشتمه (۱۲۳۴ هـ ش = ۱۸۵۵ ع) د جمعې په ورځ د ۵۹ یا ۵۸ کالو په عمر مړ او د حضرت جي بابا په هدیره کي ښخ سو.**

**میرزا حنان بارکزي یې پر مرګ داسي اوښکي تویي کړي دي:**

و جوار ته د مولی سردار قرین ولاړ
چي مرغوب د کل عالم و په تحسین ولاړ
د هنر د علم کان د حیا بحر
په خلعت د نېکنامۍ څه ښه رنګین ولاړ
په جیفه یې د دنیا ځان آلوده نه کړ
د عمل په صابون پاکه جامه سپین ولاړ
و سخا ته یې حیران حاتم طی و
تکیه ګاه د هر فقیر و د مسکین ولاړ
فیض رسانه لکه لمر و کل جهان ته
مستقیم پر شریعت حامي د دین ولاړ
هر مشکل به حل کېده د ساټلانو
سردار نه و، د حضرت سلیمان نګین ولاړ
په حکمت یې افلاطون شاګرد د عصر
چي تقریر یې و شېرین تر انګبین ولاړ
اعتماد باندي د کړو نه دئ حنانه
چي سردار مهردل له دې دنیا یقین ولاړ[۱۷]

**میرزا احمدعلی د سردار مهردل خان د مړیني تاریخي ماده په دې**

---

[۱۷] د میرزا حنان بارګزي دېوان، د محمد معصوم هوتک په زیار، ۳۵ مخ، ۱۳۷۰ ش.

رباعي کي ويلې ده:

احمد از هر کس تفحص می نمود
سـال فوت آن شه اقلـیم جود
هـاتفی بنهاد سر بر پاش گفت
"منزل او بـاد جنات الخلود"

حل : وروستی مصرع تاریخي ماده ده چي ابجدي ارزښت یې ۱۲٦٦ کیږي. که د هاتف کلمې د سر (ه) ابجدي ارزښت (۵) د (بنهاد) په قرینه ورسره جمع سي، د سردار مهردل خان د مړیني کال ۱۲۷۱هـ ق لاس ته راځي. په پښتانه شعراء دوهم ټوک ۴۴٦ مخ کي دغه تاریخي مصرع د (منزل او باد جنات خلود) په شکل ناسمه ثبت سوې ده.

میرزا احمدعلی خان د سردار غلام محمد خان طرزي په مدحه کي هم قصاید لري چي د طرزي په دیوان کي درج دي.

# سردار خوشدل خان

سردار خوشدل خان د سردار مهردل خان مشرقي زوی و.

علامه حبيبي ليکلي چي سردار خوشدل خان شعر وايه او د شاعر په توګه پېژندل سوی و. د ده يوه فارسي غزل يې له کوم خطي جونګ څخه په دې ډول رانقل کړې ده[1] :

بسی تپیدم، الـــم کشـــیدم، رخت ندیدم، درین جــدایی
غمت خریدم، بدل گـــزیدم، بجان رسیدم، اگـــر نیایی
قسم برویت، بتار مـــویت، که من بکویت، بجســتجویت
اگـــــر بسویت، رسم ببویت، زبیم خویت، کـــنم گـــدایی
بخال هـــندو، بدام گیسو، بچـــشم آهـــــــو، بقوس ابرو
زدی بهرسو، خـــدنگ جـــــادو، بت پریرو، چه دلـــربایی
برم نشستی، بعین مستی، زبـــزم جســـتی، زجمله دستی
دلم شکستی، بزلف بستی، بغمزه خستی، چه جان گـــزایی؟
زجور هجران، شـــدم پریشان، به آه سوزان، بچشم گـــریان
بروی جـــانان، زدرد هجران، کنم صد فـــغان، اگـــر بیایی
باین شمایل، نمودی مایل، ربوده یی دل، بگو چه مشـــکل؟
اگـــر به "خوشدل" بلطف شامل، بشوق کامل، نظر نمایی

سردار غلام محمدخان طرزي د سردار خوشدل خان پر وفات (شنبه، ۲۳ د ربيع الثانی ۱۲۹۵ هـ ق = ۲۷ اپریل ۱۸۷۸ع) يو نظم لري :

چنان در غمش خون از دل برآمد
که موجش زد امان قـــاتل برآمد
زبس خاک غم ریخت غربال گردون
سراپای این بحر ساحـــل برآمد

---

[1] شل مقالې، څلورمه برخه، ۶۴ مخ.

چه نسرین و درو چه گلهای رنگین
که ازلای این دهـــر پر گل برآمد
مجو میوهٔ خوشـــدلی از درختم
که نخل امـید م زحاصـــل برآمد
چسان غنـچهٔ خـو شدلی گل برآرد
کزین باغ سردار خــوشـدل برآمد
فـــغان، زیر گلِ رفت پای گل من
بگلشن اگـــر چه گل از گلِ برآمد
بـــماه ربـــیع دوم روز شـنبه
مهی مـهر دلــــجو زمنزل برآمد
زمـه بود بیست ســـوم آنکه ناگه
میان پردهٔ مــرگ حـــائل برآمد
چنین گفت طـرزی بتاریخ فـوتش
که ازچاه اندوه خـوشدل برآمد[۱۹]
۱۲۹۵

[۱۹] حل : تاریخي ماده (که از چاه اندوه خوشدل برآمد) ده، چي ابجدي ارزښت یې ۱۲۹۵ کېږي . د (آمد) کلمې ممدوده الف باید دلته پر دوو حساب نه سي.

## د میراخور کلا محمدزي



## د پنجوايي محمدزي



## د سرپوزۍ او اشوغې محمدزي




---

* مدیر کل محمد مشرقي.

# والي شیرعلي خان

سردار شېرعلیخان، چي د تاریخ په کتابوکي په والي شېرعلیخان یا قندهاري شېرعلیخان باندي مشهور دئ، د سردار مهردل خان زوی و[۱]. دی له ۱۸٦۸ څخه تر ۱۸۷۱ ع پوري د کندهارد والي په توګه ټاکل سوی و. په ۱۸۷۸ع کي د امیر شېرعلیخان د شورا غړی سو. ده د امیر شېر علیخان په دربار کې خورا ښه مقام درلود او د امیر له ډېرو نزدې ملګرو څخه و. د ګلشن امارت لیکوال مولوي نورمحمد نوري چي د دغه عصر سړی او د حالاتو مستقیم راوي دئ، سردار شېرعلیخان (والي شېر علي خان) د "شیر بیشهٔ دلاور، غضنفر میدان دلاوری سردار ذوی الاقتدار" په القابو یادوي[۲] او د ده په باب لیکي : "آن سردار نمک حلال وفادار پسر سردار مهردل خان مرحوم است که در شیوهٔ صداقت ثانی اثنین صدیق اکبر و در طریقهٔ مردانگی و فتوت دویم عمر ... (بود)[۳]".

پر کندهار باندي د سردار محمدامین خان د واکمنۍ پر وخت سردار شېرعلیخان د نوموړي له نزدو کسانو څخه و. کله چي سردار محمدامین خان له امیر شېرعلیخان سره د مخالفت لار ونیوله[۴] او د کندهار زیاترو

---

[۱] په عین الوقایع (۱۱۹مخ) کي یې سردار شېرعلیخان د کهندل خان لمسی بللی دئ او د کتاب مصحح په حاشیه کي ورته کښلي دي (ظاهراً فرزند کهندل خان بوده است). دواړي خبري ناسمي دي. سردار شېر علیخان د مهردل خان زوی او د کهندل خان وراره و. په (۱۳۴مخ) کي یې بیا د مهردلخان زوی بللی دئ. په دغه مخ کي د سردار شېرعلیخان له لښکر څخه د سپاهیانو د بغاوت جریان په لنډه توګه بیان سوی دئ.

[۲] ګلشن امارت، ۱٦۴ مخ، دوهم چاپ، ۱۳۸۲ش.

[۳] هماغه اثر، ۱۹۳مخ.

[۴] د دې مخالفت بېخکي علت په کندهار کي د سرو زرو کان پیدا کېدل او د دغه کان دتصاحب پر سر لانجه وه، چي د اتو زرو تنوکندهاریانو د مرګ په بیه تمامه سوه.

خانانو او مخورو په پټه سره له امير شېرعليخان سره اړيکي ساتلي وو او ورځني جريانات يې د ده تر غوږو ور رسول، سردار شېرعليخان په دغه موده کي پټه خوله پاته و. د ده له دې چلند څخه امير شېرعليخان خوا بدی سو. کله چي د کجباز په جګړه کي (۱۰ محرم ۱۲۸۲ق = ۷جون ۱۸٦۵ع) سردار محمدامين خان د امير شېرعليخان د لښکرو له خوا ووژل سو او امير کندهار ته راغی، له سردار شېرعليخان سره ماڼېجن و اونه يې غوښتل چي ورسره ويني. سردار شېرعليخان هم ځان ګوښه کړ، خو له امير سره يې خپله وفاداري خوندي ساتلې وه. په دغه وخت کي امير شېرعليخان هرات ته د تګ بندوبست کړی و، خو اقتصادي حالت يې ډېر وران و. سردار شېرعليخان په دغه وخت کي ورحاضر سو او دېرش زره روپۍ او د سفر نور لوازم او خيمې يې ورته برابرې کړې. په دې ډول د ده او امير شېر عليخان ترمنځ دوستي بيا تازه سوه[۵]. کله چي امير شېرعليخان مخ پر هرات ونيو او تر هغه وروسته ترکستان ته ولاړ، سردار شېرعليخان خپل اولادونه له کندهار څخه د ښوراوک له لاري تر کراچي پوري ورسول او پخپله يې د ايران د بوشهر له لارې ځان اول هرات او بيا تخته پل، ترکستان ته ورساوه او د امير شېرعليخان ملګری سو.

د سيدآباد په جګړه کي چي د امير شېرعليخان او سردار عبدالرحمان خان تر منځ وسوه (۲۸ ذی الحجه ۱۲۸۲هـ ق = ۱۵مې ۱۸٦٦ع)، سردار شېرعليخان د جګړې تر پايه پوري وجنګېدی خو د امير شېرعليخان لښکرو سخته ماته وخوړه او د سردار عبدالرحمان خان پلار محمدافضل خان يې د کابل تخت ته د امير په توګه ورساوه. په دې جګړه کي سردار شېرعلي خان له جرنيل نوراحمد خان سره يو ځای د سردار عبدالرحمان له خوا ونيول سو او ځنځير و زولانه کابل ته واستول سو. ارواښاد غبار ليکي، چي په دې جګړه کي "... سردار شيرعليخان ... در وظيفۀ عسکری تغافل کرد و امير شيرعليخان منهزماً به قندهار رفت[٦]". ګويا د جګړې د ماتي پړه پر سردار شېرعليخان وراچوي. (په دغه جګړه کي پنځه زره تنه مړه او

---

[۵] ګلشن امارت، ۱۹۳مخ.

[٦] افغانستان در مسير تاريخ، ۵۹۱مخ.

يو زر شپږ سوه تنه تپيان سول[۷]. امير محمدافضل خان د پاچهۍ تر ټينګېدو وروسته سردار شېرعليخان له بنده راوايست او د همکارۍ بلنه يې ورکړه خو سردار شېرعليخان په دې پلمه له همکارۍ څخه نټه وکړه چي هر وخت کندهار د امير محمد افضل خان لاس ته ورسېد، دی به وروسته همکاري ورسره پيل کړي. سردار شېرعليخان له بند څخه تر خلاصېدو وروسته ځان په څه چل کندهار ته ورساوه او له امير شېرعليخان سره يو ځای سو.

د ۱۲۸۳ هـ ق =۱۸٦٦ع کال په مني کي چي امير شېرعليخان له کندهار څخه بيا د کابل د تخت نيولو په نيت لښکر وايست، د کندهار چاري يې سردار محمدابراهيم خان ته وسپارلې او سردار شېرعليخان يې د (اتاليق) په توګه ورسره مقرر کړ[۸]. د امير شېرعليخان لښکرو ته په کلات کي د سردار عبدالرحمان خان له خوا بيا سخته ماته ورکړه سوه. امير کندهار ته تر شا سو او مخ يې پر هرات ونيو. په دغه سفر کي هم سردار شېرعليخان د امير ملګری و.

په ۱۲۸۵هـ ق =۱۸٦۸ع کال چي امير شېرعليخان د غزني په شش ګاو کي د امير محمداعظم خان او سردار عبدالرحمان خان لښکرو ته ماته ورکړه او د دوهم وار له پاره د کابل پر تخت د امير په توګه کېښېنوست، سردار شېر عليخان ته يې د کندهار حکومت ورکړ. ويل کېدله چي د ده په سر کي د پاچهۍ هوا هم وه او د کابل د خلکو ډېره ورسره جوړه نه وه. نوموړی په ظلم او شقاوت باندي مشهور و. د همدې سخت چلند له امله د صدراعظم سيد نورمحمد شاه په حکومت کي تر شاملېدو وروسته، امير شېرعلي خان ورڅخه ناراضه سو خو بيا يې هم د يوه لوړ رتبه دولتي شخص په سترګه ورته کتل. سردار شېرعليخان کندهاري په هغه هيئت کي هم شامل و، چي د امير شېرعليخان له خوا له روس سره د مذاکرې په نيت

---

[۷] هماغه اثر، هماغه مخ.
[۸] ګلشن امارت، ۱۷۲مخ.

مرکزي آسیا ته استول سوئ و (جنوري ۱۸۷۹م)[۹].

د امیر شېرعلیخان تر مرګ وروسته چي د هغه مشر زوی امیر محمد یعقوب خان د کابل پر تخت کښېنوست، سردار شېرعلیخان کندهاری په کابل کي و او د نوي امیر په اعتمادي خلکو کي شمېرل کېدی او کله چي امیر محمدیعقوب له انګرېزانو سره د بدنام تړون لاسلیکولو په خاطر ګندمک ته روانېدی، سردار شېرعلیخان ته یې د کابل حکومت وسپاره. د ګندمک د منحوس تړون تر لاسلیکېدو (٦ می ۱۸۷۹ع) وروسته چي امیر محمدیعقوب خان کابل ته راستون سو، سردار شېر علیخان یې د کندهار د والي په توګه وټاکه او هغه هم خپل ولایت ته بیا ستون سو. له دغه وخت څخه سردار شېرعلیخان له انګرېزانو سره د وفادارۍ داغ پر تندي کښېښوو. غبار لیکي، چي سردار شېرعلي څکه له انګرېزانو سره جوړ سو، چي نه یې غوښتل د کندهارحکومت یې له لاسه ووزي[۱۰]. په کابل کي د کیوناري انګرېز او د هغه د ملګرو تر وژلو وروسته انګرېزانو خپل خښمېدلی لښکر د جنرال رابرټس په مشرۍ کابل ته راولېږی او امیر محمدیعقوب خان یې بندي هندوستان ته واستاوه او د کابل ښار یې وران کړ. د انګرېزانو بل لښکر د ستیوارټ په مشرۍ کندهار تــه ورسېد (فبروري ۱۸۸۰ع) او سردار شېرعلیخان یې د کندهار ولایت ته تر ټولو نورو سردارانو مناسب سړی وباله او ده هم د هندوستان وایسرا ته د یوه لیک په ذریعه له انګرېزانو سره د خپلي وفادارۍ ژمنه تجدید کړه. وایسرا د ده په جواب کي ورته ډېر درانه القاب[۱۱] ولیکل او دا هغه القاب وه، چي د امیر عبدالرحمن خان له پاره هم منل سوي وه. د هند حکومت د سردار شېرعلیخان له پاره د ده

---

[۹] د دې هیئت بل غړی د انګرېزانو جاسوس قاضي قادرو و. قاضي د دې پر ځای چي له روسیې سره د امیر په ګټه خبري وکړي، هڅه یې کوله چي په څه ډول سردار عبدالرحمن خان پیدا کړي او د افغانستان تاج و تخت ته یې وهڅوي، (غبار ۴۵۷مخ). د دې هیئت لېږلو کومه ګټه ونه کړه څکه امیر شېرعلیخان ته د وطن حالاتو د زړه دوک واچاوه او په مزارشریف کي مړ او هورې ښخ سو.

[۱۰] غبار، افغانستان در مسیرتاریخ، ۶۰۹مخ.

[۱۱] His Highness Sardar Shir Ali Khan, Wali of Kandahar & its Dependencies

پخپله خاوره کي د یوویشتو توپو سلامي او په انګرېزي قلمرو (هندوستان) کي د نونسو توپو سلامي منظور کړه[۱۲]. غبار لیکي، چي د ۱۸۸۰ م کال په می کي کلنل جان د انګلیس د حکومت له خوا د سردار شېرعلیخان تر ملا د تحت الحمایګی توره وتړله او ده ته یې مبارکي وویله. سردار په جواب کي وویل : "... این شمشیر را در راه خدمت به انګلستان از غلاف خواهم کشید[۱۳]".

د میوند په تاریخي جنګ کي (۲۷جولای۱۸۸۰ع) د والي شېرعلیخان لښکر د انګرېزانو په پلوي د هلمند پر غاړه سنګر نیولی و، خو لښکر یې د غازي ایوب خان خوا ته ور واووښت. په دغه تاریخي غزا کي د انګرېزانو تر ماتي وروسته والي شېرعلیخان هندوستان ته له خپلي کورنۍ سره ولېږه سو او د کراچي ښار په شمال کي یې په یوه غرنۍ سیمه کي[۱۴] ورته د استوګني له پاره ځای وټاکه. والي شېرعلیخان او کورنۍ یې د ۱۸۸۰ع کال د ډسمبر پر ۲۷مه کراچي ته ورسېدل. د ده اولاده به غالباً اوس هم هورې اوسي ځکه د لودویک ادمک د لیکني پر اساس د ۱۹۷۱ع کال تر وخته لا هورې اوسېدله.

په هغه لیک کي چي د ۱۸۸۰ع کال د جولای پر ۱۸مه د کشکنخود له انګلیسي کمپ څخه انګلستان ته د یوه انګرېز افسرله خوا لیږل سوي و. له والي شېرعلیخان سره یې د خپلي کتني په باب داسي کښلي دي :

"... زه باید ووایم چي والي شېرعلیخان د زیات ذکاوت څښتن و او په افغاني سیاسي مسایلو کي یې پوره معلومات درلودل. دی شېر پنځوس کلن ښکاري. ښکلې څېره لري او د یهودانو په شان جګه چنګکي پزه یې پر مخ ناسته ده. ډېري خبري کوي او پر افغاني موضوع ګانو باندي یې په خلاصه خوله رغېدل خوښېږي. د امیر شېر علیخان او د هغه د زوی ایوب خان په باب ډېر بیانونه کوي. دی ښایي یوازنی سردار وي، چي په وروستیو کلونو کي یې خپل همنومه امیر ته د مشورې غوښتلو پر وخت خپلي

---

[۱۲]لودویک ادمک، هو از هو اف افغانستان، ۲۴۳مخ.

[۱۳]افغانستان در مسیرتاریخ، ۴۴۶مخ.

[۱۴]سراج التواریخ ۲/۲۵۴مخ.

صادقانه نظریې ورکړي وې. ده د افغاني مسایلو په باب معلومات شخصاً تر لاسه کړي دي او ما ته یې وویل چي له جلال آباد پر ته یې د افغانستان په هر ولایت کي د والي په توګه کار کړی دئ. دی د زیاترو نورو والیانو په شان د سخت چلند له امله غندل سوی دئ خو زه باور لرم، چي د ده دا روش د ده د خپل استبداد له امله نه، بلکي خپل بادار ته د ده د وفادارۍ د یوې اړتیا له اسیته و(۱۵)".

په یوه بل اثر کي د ده په باب داسي لولو:

"والي شېرعلیخان هغه سړی و، چي له Sir Donald Stewart سره یې ټینګې شخصي اړیکي درلودې. په عمومي توګه دا خبره منل سوې ده، چي د دغه مقام (د کندهار والي توب، م . هـ) له پاره له ده پر ته بل کوم مناسب سردار نسته ځکه دی د ډېرعزت څښتن و. دی د انګلستان پر وفادارۍ ژمن و، ځکه یې نو له هغوی څخه هیڅ شی نه پټاوه. له بده مرغه ده پر دغه شان بې قانونه خلکو باندي د واکمنۍ ټینګولو کفایت نه درلود. دی له هماغه پیل څخه لا حتی د خپلي قبیلې د سرتېرو له نارضائیتي سره مخامخ و ... د ملکې ویکټوریا له خوا د کندهار ولایت د والي په توګه د شېرعلیخان د ټاکلو رسمي دربار د ۱۸۸۰ کال د مي پر یوولسمه جوړ سو. مراسم د بې شیدو چایو د پیالو په وېشلو پیل سول او ورپسې ویناوي وسوې او د ملکې او وایسرا له خوا سوغاتونه را وړاندي سول او په پای کي بیا د افغاني شېرینیو پتنوسونه او د یخو شربتو صراحي ګان راوړل سول ... دوې ورځي وروسته شېرعلیخان له جنرال پریمروز سره بیا وکتل ... او ټولو مېلمنو ته یې د دغي کتني په یاد خپله نوې طلایي سکه، چي د عام خپرښت له پاره وهل سوې وه، ورکړه ... شېرعلیخان (د کندهار) په نزدې شاوخوا کي د سرو زرو یو کان موندلی و او کله چي بروک (Brooke) یو وخت دی د دغه کان په بېخ کي د خپلو زېرمو د کتلو پر وخت ولید، ډېر اندېښمن سو[۱۶]".

---

(۱۵) وګ: Major Ashe د Personal Records of the Kandahar Campaign راغونډونه، ۴٦ مخ، ۱۸۸۱ع لندن.

[۱۶] وګ: My God – Maiwand! د Leigh Maxwell لیکنه، ۷۱ – ۷۲ مخونه، ۱۹۷۹ع لندن. دا کان تر سردار شېرعلیخان د مخه سردار محمد امین خان موندلی و (م. هوتک).

سید ابوالحسن قندهاري چي په ۱۲۸٦هـ ق = ۱۸٦۹ع کال د امیر شېر علیخان دربار ته د نوموړي د پاچا کېدلو له امله د خراسان د والي حشمت الدوله له خوا د مبارکۍ رسولو له پاره تللی و، شپاړس ورځې په کندهار کي تېري کړي دي. دی وایي چي په دغه وخت کي د امیر له خوا د کندهار حاکم سردار شېرعلیخان و او زیاتوي چي له ده سره د کندهار په ارګ کي د سر تېرو دوه لښکره او اتلس توپه موجود وه[۱۷].

سردار غلام محمدخان طرزي چي د امیر عبدالرحمان خان په امر له هیواده وشړل سو او په کراچي میشت سو، د سردار شېرعلیخان له ځینو کارو څخه ناراضه و. همدغه سبب و، چي له کراچي څخه یې شام ته د سلطان عبدالحمیدخان دربار ته پناه وروړه. سردار غلام محمد خان په یوه لیک کي، چي خپل وراره سردار محمدانورخان ته یې کښلی دئ، په ډېره لوړه ادبي ژبه د خپلو اسلافو پر هغه جلال او برم باندي افسوس کوي، چي د "بچه ګانو" په لاس له منځه وړل سوی و. په دې لیک کي دی د بې اتفاقیو په باب خواشیني څرګندوي او لیکي : "... هنوز کجاست پشم ریش گذشتهٔ پدران بدست بچه گان نداف حراف این زمان افتاده تا ازین نمدچه کلاه دوزند و ازین خرقه چه ردا سازند...[۱۸]".

دی سردار شېرعلیخان په کنایه ډوله توګه "بوم شوم" بولي او د خپلو ویاړونو له منځه تلل د هم دغه " بوم شوم" له اسیته ګڼي. د دېوان په ۷۰۰ مخ کي د (غزل در وصف آن بوم شوم) تر سرلیک لاندي دا غزله ثبت ده :

ای بـــوم شوم این گل اول قـدوم تست
عالم خراب از قـــدم شـوم و بوم تست
صد شهر شد خــــراب زآواز بوم شوم
آثار مــــــرگ بستهٔ دیدار بوم تست
مـردم رود بسوی عدم چون تو میرسی
اینهم ز فیض خاصه و لطف عـموم تست

---

[۱۷] گزارش سفارت کابل، به کوشش محمد آصف فکرت، ٦۳ مخ، تهران ۱۳٦۸ ش.
[۱۸] دیوان طرزی افغان، ٦۹۸ مخ.

آتش بکشتزار عـــدم میزند دمت
نار جحیم خود نفس چـون سموم تست
خواندی زبسکه درس زبرهـان جاهلی
کشف اللغات جهل کـتاب علوم تست
آثار خیر و شر زتو پوشیده جـاهلی
بر دیده ات غشاوه جـهول وظلوم تست
تقویم سـعد زایجـهٔ طالعت نداشت
منحوس هیات تـو هبوط نجـوم تست
طرزی سخن زآتش شـومی او مگوی
طبع شریر او شـرر شمع موم تست
(دیوان ۷۰۰ مخ)

غبار د سردار شېرعلیخان او ده ته ورته نورو سرداراتو په باب لیکي چي : "... اینها یک دسته فیودالهای طفیلی و هیچکاره ئی بودند که فقط میخواستند نان مفت بخورند و حکم برانند، چه در سایهٔ دوست باشند یا دشمن ...[۱۹]".

د دې بحث په پای کي به دا یادونه هم وکړم، د میوند د تاریخي جګړې په وخت کي چي د سردار شېرعلیخان تر حکم لاندي افغاني لښکر د غازي ایوب خان لور ته ور واوښت، انګرېزان د سردار شېرعلي خان پر وفاداري هم شکمن سول. بریګیډیر جنرال هنري فرانسیس بروک (Brigadier-General Henry Francis Brook) چي د میوند د جګړې پر وخت د کندهار په انګرېزي قطعاتو کي د دوهم لمبر پلي پوځ قوماندان، د واک و اختیار له مخي تر جنرال پرایمروز وروسته دوهمه درجه سړی و او د ده خوجې په تاریخي جګړه کي ووژل سو (١٦ د اګسټ ۱۸۸۰ع)، تر خپل مرګ څو ورځي وړاندي د جولای د میاشتي د دېرشمي نېټې په یاداښتو کي کښلي وه، چي تر جګړې وروسته یې د کندهار په ښار کي د ناارامیو په له منځه وړلو کي د والي او کوتوال له خوا د زړه له کومي مرسته ونه سوه. جنرال هنري بروک زیاتوي چي ده کلونل سینټ جان (St.John) ته، چي د

---

[۱۹] غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، ۶۰۹ مخ.

سیاسي چارو سلاکار و، خبر ورکړی و، چې والي باید بندي کړه سي او که مي په ښار کي د چل ول کومه نخښه ولیدله، زه به یې پخپل مسئولیت توقیف کړم. جنرال د جولای د یودېرشمي نېټې په یاداښت کي لیکي، چې دی فکر کوي انګرېزي پوځ د والي له خوا غولول سوی او یا ښایي په لومه کي بند سوی وي[۲۰].

(۲۰) وګ : (Private Journal) د نوموړي جنرال بروک په قلم، ۹۵ – ۹۶مخونه. دغه اثر ما (هوتک) د انټرنېټ پر پاڼه کتلی دئ او د مخونو شمېر هم د همدغي پاڼي له مخي ښوول سوی دئ. زه نه پوهېږم چې د انټرنېټ پاڼي د مخونو شمېر به له اصل سره سر وخوري که یا؟

جنرال هنري فرانسیس بروک د شمالي آیرلینډ و. د ۱۸۸۰ع کال د اګسټ پر شپاړسمه د کندهار د ده خوجې په جګړه کي ووژل سو. مړی یې تر جګړې څو ورځي وروسته، چې غازیان له ده خوجې څخه ووتل، د انګرېزي لښکرو له خوا وموندل سو او هورې یې د توت تر یوې درختي لاندي ښخ کړ او څه موده وروسته یې آیرلینډ ته یوور او هورې یې ښخ کړ. د جنرال بروک دغه یاداښتونه د ۱۸۸۰ع کال د اګسټ تر څورلسمي پوري د ده پخپل قلم لیکل سوي دي او تر دغي نېټې وروسته مطالب یې د مېرمني له خوا د هغو لیکونو له مخي ترتیب سوي دي، چې د نوموړي جنرال د مړيني له امله د دولتي چارواکو او د جنرال د خپلو دوستانو له خوا دې ته استول سوي ول. دغه یاداښتونه په کتابي ډول په ۱۸۸۱ع کال په ډبلن کي چاپ سوي دي. اوس چې زه (هوتک) دا کرښي لیکم (۲۹ اګسټ ۲۰۰۷ع)، خبر سوم چې زلمي لیکوال عبدالناصر ریشا یې پښتو ژباړلو ته ملا تړلې ده. خدای دې پر همت برکت کښېږدي.

## دوالي شېرعليخان کورنۍ شجره




* سردار نورعليخان د امير عبدالرحمان خان له خوا ونازول سو. دی په کراچي کي ډېر پوروړی و، امير يې ټول پورونه ور ادا کړل او کله چې کندهار ته د ميلې له پاره راغی، امير ورته ۱۲ازره روپۍ نوري هم ورکړې او کابل ته يې وروغوښت (غبار۲۶۰مخ). سردار نورعليخان د امير حبيب الله خان په پاچهي کي ژوندی و. فيض محمد کاتب چي د نوموړي امير په حکم سراج التواريخ کيښ، د دربار پر نورو معمرو غړو سربېره يې له سردار نورعليخان څخه هم د تاريخي پېښو په باب معلومات اخيستل (وګ : سراج التواريخ، ۲/۱مخ، موسسهٔ تحقيقات و انتشارات بلخ، تهران، ۱۳۷۲ش).

# سردار شېرېندل خان

د سردار خوشدل خان زوی او د سردارمهردل خان مشرقي لمسی و. څه موده یې دخوست حکومت هم کړئ و.

# سردار خرم دل خان

سردار خرم دل خان د سردار شېرېندل خان زوی د سردار خوشدل خان لمسی او د سردار مهردل خان کړوسی و. پلار یې د خوست د والي په توګه دنده درلوده. خرم دل خان د امیر عبدالرحمان خان په وخت کي د څو کلونو له پاره له وطنه شړل سوی و، خو په ۱۹۰۱ع کال کي د امیر حبیب الله خان د تاجپوشۍ پر وخت کابل ته بیرته راستون سو. امیر جبیب الله خان ورته په ډېره درنه سترګه وکتله او په دربار کي یې لوړ مقام ورکړ. په ۱۹۱۳ع کي کندهارته راغی او دلته یې خورا ډېر اختیارات درلودل. سردار خرم دل خان په ۱۹۲۹ع کال په پشت رودکي و.

# حکمران محمدرفیق خان

حکمران محمدرفیق خان د سردار محمدانورخان زوی د سردار خوشدل خان لمسی او د سردار مهردل خان مشرقي کړوسی و. د مهردل خان د کورنۍ په متاخرو مشرانو کي د زیات دولتي او اولسي نفوذ څښتن و. د دولتي ماموریتو په لړ کي یې د ډنډ د حاکم، د کلات د حکمران او د ګرشک د حکمران په توګه کار کړی و. وروستۍ وظیفه یې د هلمند په نادعلي کي د اسکان ریاست و. حکمران محمدرفیق خان د ۱۳۳۶ ش کال په شاوخوا کي وفات سوی او د کندهارپه حضرتجي بابا کي د (کندهاري ورونو)په هدیره کي ښخ دئ.

د ده دوه زامن د عبدالقدوس خان رفیقي او عبدالخالق خان رفیقي په نامه پاته سول چي دواړه د لوړوتحصیلاتو درلوونکي ول. عبدالقدوس خان

رفيقي د عدليې وزارت د قلم مخصوص په توګه وظيفه درلوده او په ځوانۍ کې په پولينډ کې د يوې ټرافيکي پېښې له امله مړ سو او د صوفي صاحب په هديره کې ښخ دئ. عبدالخالق خان رفيقي په هند کې تحصيلات سر ته رسولي وه او تر تحصيل وروسته يې په ماليې وزارت او عدليه وزارت کې ماموريتونه درلودل. دغه راز يې د باميان، کندز او ننګرهار د والي په توګه کار کړی و. کله چې په افغانستان کې د ثور لومړۍ فاجعه پېښه سوه، عبدالخالق خان رفيقي د ننګرهار د ولايت پر مقام ناست و او د فاجعې په هماغه اوله شپه يې له جنرال يونس خان سره په ګډه وسله وال مقاومت وکړ او د کوتاچيانو په لاس له منځه يووړل سو.

## سردار شاه محمدجان (مشهور په حاجي بابا)

د سردار سلطان محمدخان زوی او د سردار حاجي منوردل خان لمسی او د سردار مهردل خان مشرقي کړوسی و. د کندهار په لوېديځ کې د ارغنداو رود پرغاړه د اشوغې په کلي کې اوسېدی. وروسته سرپوزې ته رانقل سو. ډېر دانشمند او خوش صحبته سړی و. د پخوانيو فارسي شاعرانو آثار يې مطالعه کړي وو او پخپله يې هم شعر وايه. پر افغانستان باندي د ثور د اوومي فاجعې له هيواده وتلو ته مجبور کړ او له خپلي کورنۍ سره د امريکا د متحده ايالاتو د نيويارک په ښار کې اوسېدی.
حاجي بابا د ښکار ډېر شوقي و او د دې کرښو ليکوال يې د ښکار ډېري خاطرې په زړه کې خوندي کړي دي.

## مدير ګل محمدخان مشرقي (مشهور په مدير ګلوجان)

مدير ګل محمد خان مشرقي د سردار سلطان محمد خان زوی او د سردار شاه محمدخان ورور و، چې د کندهار په معارف کې يې د احمد شاه بابا د ليسې د مدير په توګه د ډېري مودې له پاره د دغه لرغوني ښار د بچيانو په روزنه کې خورا زياتې خولې توی کړي وې. مدير ګلوجان لوړ تحصيلات درلودل او په اداره کې يې خورا نرمه خو اغيزمنه رويه درلوده.

ده د کندهار په ښار کي د فتبال لوبي له پاره خورا ډېر ځوانان وروزل. د ښکار شوق يې هم درلود او د دې قلم چلوونکی يې د ښکار په ډله کي شامل و.

مدير ګلوجان د ثور د فاجعې په لومړيو قربانيانو کي و. جنت فردوس دې په برخه سي. زوی يې محمدابراهيم مشرقي د پښتو شاعر دئ.

# د شاغاسيانو کورنۍ[1]

ايشک آقاسي مُرکّبه تورکي کلمه ده، چې يوه برخه يې "ايشک" يا "ايشيک" او بله "آقاسي" ده. ايشيک د دروازې احاطې ته وايي او آقاسي د سردار په معنا کارېږي. د ځينو څېړونکو له نظره آقاسي کلمه له (آقا + سي) څخه ترکيب سوې ده او (سي) دلته د اضافي حرف کار ورکوي. په تورکي ژبه کي "ايشي" کلمه د ښځو له پاره د توصيفي لقب په توګه کارېږي. په پښتو او فارسي کي يې معادلي اصطلاحګاني (بي بي) ګڼلای سو. د معاصر افغانستان د احمدشاهي دولت په تشکيلاتو کي به د ايشک آقاسي مقام غالباً د ايران د صفوي دربار له تشکيلاتو څخه اخيستل سوی وي. په صفوي دربار کي د ايشيک آقاسي مقام له (رئيس دربار)، (داروغه ديوانخانه)[2]، (رئيس تشريفات) سره برابر و. د ايران په قاجاري دربار کي يې د سلطنتي تشريفاتو ادارې ته (ايشيک خانه) ويله.

په وروستيو افغاني دربارو کي د ايشيک آقاسي مقام د (وزارت دربار)، (رياست تشريفات) او (سرمنشي حضور) په شان دولتي او درباري مقامو نيولی دئ.

د ايشيک آقاسي نوم او لقب په ورځنيو محاورو کي (شاغاسي) سوی دئ او د شاغاسيانو پراخه کورنۍ په همدغه نامه مشهوره ده.

---

[1] د شاغاسيانو برخه زما زوی ذکي هوتک په انګرېزي ژبه ژباړلې او د يوې مستقلي رسالې په توګه د (Afghan Shaghasis) تر نامه لاندي سږکال (۲۰۰۸ع) د علامه رشاد خپرندويي ټولني له خوا خپره سوې ده (م.هوتک).

[2] داروغه هم تورکي کلمه ده او د (سرپرست) يا (رئيس) معنا لري.

# د لويناب شېردل خان کورنۍ

دا کورنۍ د کندهاري سردارانو سره له بارکزيتوب پرته نور اړيکې نه لري. خو څرنګه چې د همدغه عصر په سياسي او نظامي چارو کې ډېره مطرح وه، ځکه يې لنډ شانته بيان له دې کتاب سره يو ځای راوړم.
لکه د دې کتاب په سر کې چې مو ولوستل شاه محمود سدوزي له خپل زوی شهزاده کامران سره په ۱۲۳۴هـ ق کال له کندهار څخه يو لښکر د کابل پر لور وايست. د دې لښکرکښۍ هدف د کابل له تخت څخه د امير دوست محمدخان ليري کول وه. شاه محمود په دې لښکر کې په سترګو ړوند سوی وزير فتح خان هم له ځان سره ملګری کړی و. د کندهار حکومت يې نائب ګل محمدخان پوپلزي ته سپارلی و. کندهاري سردارانو کهندل خان، شېردل خان او پردل خان دا موقع مناسبه وګڼله او پر کندهار ښار يې بريد وکړ او ښار يې ونيو. د ښار د نيولو په وخت کې لومړی سړی چې د نورزو د شاه برج په برخه کلا ته د لرګو پر زينه ور واوښت، ميرداد خان بارکزی و. سردار شېردل خان د ميردادخان بارکزي د دې زړه ورتوب له امله ورته د ښار تر نيولو وروسته د (ايشک آقاسي ګری) منصب ورکړ[1]. ميردادخان تر دې وخت دمخه په حکومتي سطحه کې د دومره شهرت څښتن نه و. پلار يې ملا بازار نومېدی چې د بارکزيو يو محلي مشر و او هغه د ياسين خان عمر خانزي بارکزي زوی و. له دې وخت څخه وروسته د ميردادخان بارکزي کورنۍ د شاغاسيانو د کورنۍ په نامه مشهوره سوه او د بارکزيو د سلطنت د بنسټ ايښوونکي امير دوست محمدخان (۱۸۴۳ -

---

[1] سراج التواريخ ۱۴۱/۱مخ.

ليون پولادا پخپل کتاب (Reform & Rebellion in Afghanistan,۱۹۱۹-۱۹۲۹) ۳٦ مخ کې د لويناب شېردل خان کورنۍ د کندهاري سردارانو له کورنۍ سره ګډه وي. دا يوه جدي تېروتنه ده چې پولادا ته د دغو کورنيو د مشرانو په نوموکي د (دل = Dil) له شاوندي څخه پيښه سوې ده.

۱۸۶۳ع) په دربار کې يې ښه پوره نفوذ درلود. د امير لور شاغاسي شېردل خان ته ناسته وه؟ دغه شېردل خان د ميرداد خان زوی و، چې د امير دوست محمد خان له نږدې مشاورينو او معتمدو کسانو څخه و. شاغاسي شېردل خان يو سيمه ييز اولسي سړی و او پر ټوکو ټکالو يې ظريفه طبعه درلوده. د دربار له ډېرو لوړو اراکينو سره يې د ټوکو تر بريده ظرافتونه کول او درباريانو هم بد نه ورېل[۲].

د امير شېرعليخان د پاچهۍ په سر کې چې د امير وروڼو د افغانستان په بېلابېلو ولايتو کې د بغاوت او سرکښۍ اوروڼه بل کړل، امير له شاغاسي شېردل خان څخه د دغو اورو په خاموشه کولو کې کار اخيست.

---

[۲] ميرزا يعقوبعلي خان خافي د شاغاسي شېردل خان د ظرافتونو ډېر بيانونه لري. سيد مسعود پوهنيار پخپل کتاب (ظهور مشروطيت و قربانيان استبداد در افغانستان، ص ۹۰) کې د امير عبدالرحمان خان د کالو ګنډونکي خليفه عبدالله له خولې ليکي، چې يوه ورځ يې د کابل په بوستان سرای کې د امير حضور ته د"ده دوه لمسيان، عنايت الله خان او امان الله خان راوستل. امير دواړه ځان ته مخامخ په چوکۍ کې کښېنول او د مينې لاس يې پر سرو ورتېر کړ. بيا يې د امان الله خان لاس پخپل لاس کې ونيو او په دقت يې ورته وکتل، وې ويل : دا هلک د شاغاسي شېردل لمسی دئ. امير له حاضرو کسانو څخه وپوښتل چې شاغاسي شېردل په تاسي کې چا ليدلی و. حاضرکسان ټول چپ پاته سول. خليفه عبدالله وويل چې "صاحبه ! ماليدلی و". امير سردار عبدالقدوس خان اعتمادالدوله ته، چې تر شا يې ولاړ و، مخ ورواړاوه، په قهر يې ورته وويل چې تا ولې ونه ويل چې ليدلی مي و؟ او زياته يې کړه چې که مي ته په هغو کي شمېرلای، اوس به دلته ژوندی ولاړ نه وای. (د امير مراد له "هغو" څخه د امير شېر عليخان پلويان وه. م . هوتک). امير خپلو خبرو ته ادامه ورکړه وې ويل : شاغاسي شېردل مي، چې د سيدآباد په جګړه کي (په متن کي شش ګاو دئ؟ م . ه) ټپي سو، ونيو او کابل ته مي راووست. تداوي چې يې پای ته ورسېدله او ټپ يې جوړ سو، نو يې د خوشي کېدو غوښتنه وکړه او ما هم آزاد کړ. خو ورته و مي ويل چې که بيا زما په وړاندي وجنګېدلې او و مي نيولې، بيا به نو ژوندی راڅخه ولاړ نه سې. نوموړی ډېر ظريف، په تن پياوړی او ګړ (پُر موی) سړی و. دا هلک (امان الله خان، م . ه) که هم لوی سو، د هماغه په شان به ګړ وي، حتی پر پزه به يې لا وړېښتان راختلي وي. امير زياته کړه : هر کله که پاچهي زموږ په کورنۍ کي پاته سوه او دي هلک ته وار ورسېد، يو غښتلی پاچا به ځني جوړ سي. (د امير اتکل سهي و، م.هوتک).

کله چي د امير ورور سردار محمداسلم خان په باميانو کي د بغاوت جنډه پورته کړه، امير، شاغاسي شېردل خان ورولېږی چي نصيحت ورته وکړي. په ۱۲۸۲هـ ق کال کابل د امير شېرعليخان له لاسه ووت او د سردار عبدالرحمان خان لاس ته ورغی. امير له کندهاره لښکر پسې ور ويوست. په دغه وخت کي غزني د شاغاسي شېردل خان او خداينظرخان وردک له خوا اداره کېدی. سردار عبدالرحمان خان د امير شېرعليخان د لښکرو د مخنيوي په نيت له کابله راووت، غزني يې محاصره کړ. شاغاسي شېردل خان او خداينظرخان کلک مقاومت وکړ او غزني يې ور تسليم نه کړ. کله چي د امير لښکري غزني ته راورسېدې، سردار عبدالرحمن خان د غزني کلابندي پرېښووله او سيدآباد ته پر شا سو[۳]. شاغاسي شېردل خان تل د امير شېرعليخان له پاره توري وهلې. د سيد آباد په جګړه کي (۱۲۸۲هـ ق =۱۸٦٦ع) د شاغاسي شېردل خان ورور شاغاسي اميرجان ووژل سو او پخپله شاغاسي شېردل ټپي سو او د عبدالرحمن خان لاس ته ورغی او کابل ته يې بندي له ځانه سره بوت[۴].

انګرېزانو چي امير شېرعليخان انبالې ته دعوت کړ (۱۲۸۵هـ ق=۱۸٦۹ع)، په دغه هيئت کي له امير سره شاغاسي شېردل خان او زوی يې خوشدل خان هم ملګري ول.

امير شېرعليخان چي د جلدک تر جګړې وروسته (۱۰محرم ۱۲۸۲هـ ق = ۱۸٦۵ع) کندهار ته ورسېدی. څه موده يې د ورور، سردار محمدامين جان او زوی سردار محمدعلي جان د مړيني له امله ذهني توازن له لاسه ورکړی و. وروسته چي يې بېرته حال عادي سو، نو يې ملکي و نظامي چارو ته توجه وکړه. سردار محمدابراهيم خان يې، چي څه موده د کندهار حاکم و، کابل ته د حاکم په توګه ولېږه. له ده سره يې شاغاسي شېردل خان هم واستاوه. د (پادشاهان متأخر افغانستان) مؤلف ليکي : "... ايشک آقاسی

---

[۳]تاريخ سياسی افغانستان، ۲٦۸مخ.

[۴]سراج ۲/۱۳۱مخ.

له اميرجان څخه به مراد اميرمحمدخان وي چي د ناظم دوست محمد خان پلار و. وګ : د همدې اثر د (۲۴٦مخ) شجره.

شیردل خان که شخص کهنسال کار دیده بود و از معتبران حضور امیر کبیر بازمانده باوجود افغان بودن چنان ذکی و عاقل و رموز فهم و دربار دیده بود که سزاوار تحسین است و خصوص در غیرت و شجاعت و دلاوری کمی و کوتاهی به او شان نبود[۵]".

وایي چي شاغاسي شېردل خان له سردار محمدابراهیم خان څخه ناراضه و[٦] ځکه چي د ده مشورو ته یې غوږ نه نیوه. شاغاسي یې "فتنه انگیز افغان کوهی" باله[۷]. د شاغاسي شېردل خان مشورو ته د سردار محمدابراهیم خان د نه پاملرنو نتیجه وه چي کابل ته یې د سردار عبدالرحمن خان د راتگ زمینه برابره کړه. کابل ته د عبدالرحمن خان بریالی راتگ د شېردل خان له پاره یوه لویه بدنامي وه خو د ده له وسه هیڅ هم نه وه پوره. سردار محمدابراهیم یې په خوله پیاز هم نه میده کول ځکه نو شاغاسي د ژمي په زمرین یخ کي کندهار ته د تگ بندوبست وکړ. خپل زوی شاغاسي خوشدل خان یې له سردار محمدابراهیم سره په کابل کي پرېښوو او پخپله کندهار ته رهي سو، چي د کابل جریانات د امیر شېرعلي خان تر غوږه ور ورسوي[۸].

امیر شېرعلیخان په ۱۲۹۰ھ ق = ۱۸۷۳ع کال خپل زوی شهزاده عبدالله جان د ولیعهد په توگه وټاکه او د هیواد ټولو والیانو ته یې امر وکړ، چي د دې ټاکني له امله جشنونه جوړ کړي. د امیر زوی محمدیعقوب خان، چي د دې ټاکنې له امله خوابدی و، په هرات کي د جشن مراسم پر ځای نه کړل. امیر د خپل دربار معتمدسپین ږیری شاغاسي شېردل خان ورولېږه، چي دلاسا یې کړي او کابل ته یې ورسره راولي. شاغاسي شېردل خان په دغه مأموریت کي بریالی نه سو او محمدیعقوب خان له پلار څخه نور تضمینونه وغوښتل. محمدیعقوب خان له څه مودې خوابدی، وروسته پلار ته تسلیم سو او کابل ته ورغی خو پلار بندي کړ. دې کار د ده سکنی ورور

(۵) هماغه اثر، ۱۹۷مخ.
(٦) هماغه اثر، ۲۱۰مخ.
(۷) هماغه اثر، ۲۱۴مخ.
(۸) پادشاهان متاخر، ۲۱۷مخ.

سردار محمدایوب خان ډېر وخښماوه. امیر شېرعلیخان شاغاسي شېردل خان او څو نور معتمدین هرات ته ولېږل چې د سردار محمدایوب خان اعمال تر څارنې لاندې ونیسي. سردار محمد ایوب خان د هرات په سیاوشان کې شاغاسي ونیو او ځنځیر پېچ یې هرات ته بوت او له هغه ځایه یې د کوهسان سیمې ته بندي ولېږه. سردار محمدایوب خان تر یو لږ جنګې مانورو وروسته له پلار سره د مقابلې توان په ځان کې ونه لید او مشهد ته وتښتېد. د محمدایوب خان تر تېښتې وروسته د ده ځینو پلویانو غوښتل چې شاغاسي شېردل خان په هماغه بندیخانه کې ووژني، ځکه شاغاسي ټول هغه کسان پېژندل چې له سردار محمدایوب خان سره ملګري ول او هغوی بېرېدل چې ښایي شاغاسي به هغوی امیر ته وروپېژني. خو د ایوب خان د پلویانو په دې تصمیم باندې مهدي قلیخان (مشهور په خان آغا جمشیدي) خبر سو، خپل وروڼ یې له اوو سوو تنو سره د شاغاسي شېردل ژغورنې ته ولېږه. هغوی شاغاسي له بنده راویوست او کشک ته یې بوت. له هغه ځایه یې د اولسي خلکو په ملاتړ پر هرات برید وکړ، دغه ښار یې ونیو او کله چې د امیر له خوا لېږل سوی سپهسالار حسین علیخان ور ورسېد، ښار یې هغه ته ورتسلیم کړ او پخپله شاغاسي د امیر په فرمان کابل ته وغوښتل سو[۹]. شاغاسي شېردل خان په ۱۲۹۱هـ ق = ۱۸۷۴ع کال د شمالي ولایاتو د حکمران په توګه وټاکل سو او په همدغه کال د امیر له خوا ده ته د (لویناب) لقب او زوی خوشدل خان ته یې د (کمکي) ناب لقب وُرکول سو.

شاغاسي شېردل خان لویناب تر ۱۲۹۵هـ ق =۱۸۷۸ع کال وړاندې په مزارشریف کې مړ سو او د حضرت شاه ولایتمآب په روضه کې ښخ دئ.

---

[۹] سراج ۲/ ۱۹۵– ۱۹۶مخونه.

# خوشدل خان لويناب[1]

خوشدل خان د لويناب شېردل خان زوی و، چي د ۱۸۴۴م کال په شاوخوا کي زېږېدلی و. پلار يې د امير شېرعليخان شاغاسي او دی پخپله د امير حبيب الله خان د ګراني ماندينې ميرېزی ورور و. د خوشدل خان مور (سايره جانه) نومېدله او د امير دوست محمدخان لور وه.

خوشدل خان يو وخت د ترکستان د والي په توګه وظيفه درلوده. ده په هغه ډله کي برخه اخيستې وه، چي په ۱۸۷۸م کال کي کابل ته د روسي هيئت د بدرګې له پاره ټاکله سوې وه، او کله چي کابل ته د انګرېزانو بدبخته سفير کيوناري (L.Cavagnari) راتلی، خوشدل خان يې په بدرګه ورسره ملګری و.

لويناب خوشدل خان په ټولو هغو جګړو کي چي د امير شېرعليخان او سردار عبدالرحمن خان تر منځ سوي وې، د امير شېرعليخان له لښکرو سره ملګری و. امير شېرعليخان چي په ۱۲۹٦ھ ق =۱۸۷۹ع له کابله بلخ ته ولاړ چي له روسي دولت څخه له انګرېزانو سره د جګړې په برخه کي مرسته تر لاسه کړي. هورې د وطن له درده د مرګي خوبړ ورولوېده. دی لا وفات سوئ نه و، چي زوی يې سردار محمدابراهيم.خان تخته پل ته ځان ورساوه چي د هغه ځای لښکر د ځان مله کړي خو لښکرو ورسره مخالفت وکړ او دی د هزاره جات له لاري مخ پر کابل رارهي سو. په دغه وخت کي امير شېرعليخان په مزارشريف کي وفات سو (۲۹ صفر ۱۲۹٦ھ ق = ۲۲ فبروري ۱۸۷۹ع). د ده له مرګ سره په ټول شمال کي اړودوړ پېښ سو. د تخته پل لښکرو د لويناب خوشدل خان کور چور کړ. لويناب يې له

---

[1] امير شېرعليخان په ۱۸۷۴ع کال کي شاغاسي شېردل خان ته د لويناب او د ده زوی خوشدل خان ته د کمکي ناب لقب ورکړ (پېښليک، ۲۰۱مخ). خوشدل خان ته د پلار تر مړيني وروسته د لويناب لقب ورکړه سوی دئ.

شاغاسي محمدشاه خان سره يو ځای بندي کړ. خو امير محمديعقوب خان تر خپل جلوس (ربيع الثانی ۱۲۹٦ه ق = مارچ ۱۸۷۹ع) وروسته لويناب خوشدل خان په کابل کې پر خپله وظيفه مقرر کړ[۲]. څو مياشتي وروسته خوشدل خان لويناب له غازي سردار محمدايوب خان سره ملگری سو. کله چي غازي سردار له هرات څخه مخ پر کندهار باندي له انگرېزانو سره د غزا په نيت را رهي سو، لويناب شېردل خان ورسره ملگری و، او د لودويک ادمک له خولې چي د لښکر دوهم قوماندان گڼل کېدی[۳]. کله چي تر غزا وروسته غازي سردار د انگرېزانو د درانه پوځ له لاسه د ۱۲۹۷ه ق کال د روژې پر ۱۴مه د کندهار په باباولي کي ماته وخوړه او هرات ته پر شا سو، هورې يې خپلي قواوي له سره تنظيم کړې او له خپلو وفادارو سرتېرو سره يې مخ پر کندهار ونيو. په دغه وخت کي کندهار د انگرېزانو له خوا امير عبدالرحمن خان ته ور تسليم سوی و. غازي سردار چي کندهار ته روانېدی، په هرات کي يې خپل وراره موسي خان د امير محمديعقوب خان زوی د حکومت مشر وټاکه او لويناب خوشدل خان يې د هغه د مرستيال په توگه ورسره پرېښود[۴]. د غازي سردار لښکرو د امير عبدالرحمن لښکرو ته ماته ورکړه او کندهار بيا د غازي ايوب خان لاس ته ورغی خو دا وار امير عبدالرحمن پخپله له يوه مجهز لښکر سره کندهار ته راغی او د غازي ايوب لښکرو ته يې د کندهار زاړه ښار ته نژدې ماته ورکړه. تر دغي جگړې وروسته چي غازي ايوب خان بيا مخ پر هرات رهي سو او ورپسې پارس ته ولاړ، لويناب خوشدل خان هم ور سره ملگری و. دوی په تهران کي اوسېدل. علامه حبيبي ليکي چي څه موده وروسته غازي سردار د ميمنې د والي دلاورخاڼ په غوښتنه له تهرانه پټ مشهد ته ولاړ (۱۰ربيع الاول ۱۳۰۱ه ق). له غازي سردار سره جنرال پرويز شاه خان، خوشدل خان لويناب، سردار محمدهاشم خان، قاضي عبدالسلام خان، عبدالله خان ناصر او احمدعليخان ملگري وه. مگر دغه ډله د ايران حکومت د انگرېزانو په

---

[۲] تاريخ سياسی افغانستان، ۳۱۱ مخ.

[۳] هو از هو ان افغانستان، ۱۸۰ مخ.

[۴] مهدي فرخ، تاريخ سياسي افغانستان، ۳۸۹مخ، ۱۳۷۱ش.

غوښتنه ونیول او په قوچاق کي يې نظربند کړه[۵] خوشدل خان لويناب په پای کي له غازي سردار سره هندوستان ته وکوچېد. هورې د ۱۹۰۴ع کال تر جولای پوري پاته سو. په همدغه کال د اګسټ په میاشت کي له خپلو پنځو ورونو او يو زيات شمېر خپلوانو سره خپل هيواد ته راستون سو. دا وخت په افغانستان کي د امیر حبيب الله خان د پاچهی دريم کال و. امیر د دغه کال د لوی اختر په میاشت کي يو چاپي فرمان خپور کړ او په هغه کي يې د دولتي چارو د ښه انتظام په مقصد ځيني ټاکني وکړې، چي په هغو کي خوشدل خان لويناب د کابل د نائب الحکومه په توګه مقرر سوئ و[۶]. دغه وخت ورته د امیر له خوا د معتمد الدوله لقب هم ورکړه سو.

لويناب خوشدل خان د شورا د خاص مجلس غړی او د امیر حبيب الله خان سلاکار و. په ۱۹۱۶ ع کال کي د کندهار د والي په توګه وټاکل سو. پر دغه وظيفه باندي د امیر امان الله خان د پاچهی تر لومړي کال پوري پاته سو. د ۱۲۹۸ش کال په حمل کي (فبروري ۱۹۱۹ع) چي صدراعظم سردار عبدالقدوس خان اعتمادالدوله د خپلواکی د جګړې له پاره د کندهار د جبهې د قوماندان په توګه وټاکل سو او کندهار ته ورسيد، لويناب خوشدل خان يې له وظيفې ګوښه کړ.

د خوشدل خان نوم د ديوان عالي په هغو غړو کي سته، چي د محمدولي خان دروازي او محمود سامي د محاکمې په باب د نادرخان د پاچهی په پيل کي جوړ سوی و[۷].

---

[۵] پېښليک، ۲۰۷مخ.
[۶] پېښليک، ۲۲۱مخ.
[۷] وګ : محاکمهٔ ... محمدولی خان و محمود سامی، ص۲۶، چاپ ۱۳۸۳ش.



شاغاسي خوشدل خان لويناب

# د شاغاسي شېردل خان لوڼې

د شاغاسي شېر دل خان پنځه لوڼې پاته سوې :

- تاجور سلطانه (کوکوجانه) : په سردار محمدعلي خان محمدزي واده وه. د کندهار پخواني نائب الحکومه محمدیونس خان او محمدولي جان یې زامن وو.

- سرور سلطانه (علیاحضرته) د سراج الملت والدین امیر حبیب الله خان ملکه او د امیر امان الله خان مور وه[1]. د امان الله خان په پاچا کېدو او په دولتي مقاماتو کي د بارکزیو په مقرریو کي د دې ښځي لوی لاس و. کله چي د سقوي اغتشاش له امله امان الله خان له تخته لاس پر سو او کندهار ته ولاړ، علیاحضرته د کندهار د خلکو د ملاتړ له امله کوړپه کور وګرزېدله. د وخت روحانیونو ته پخپله ورغله او د کابل په بیا نیولو کي یې له هغوی څخه مرسته وغوښتله. ما (هوتک) د خپلو مشرانو له خولې اورېدلي وه، چي علیاحضرته په کندهار کي د عمرجان صاحبزاده جامع ته پخپله په بګۍ کي ورغله او له هغه څخه یې د مرستي غوښتنه وکړه.

---

[1] سرور سلطانه په ۱۲۹۴هـ ق =۱۸۷۷ع کال زېږېدلې او په پنځلس کلنۍ کي یې له سردار حبیب الله خان (وروسته امیر حبیب الله خان) سره واده وکړ. (وګ : پېښلیک، ۲۱۲مخ). امیر حبیب الله خان چي پر تخت کښېنوست، د دې له پاره چي د حنفي شرع پر خلاف یې عمل نه وي کړی، خپلي څلور تنې ښځي یې طلاق کړلې چي یوه یې د هرات د نائب الحکومه سعدالدین خان بارکزي لور وه، دوهمه یې د یوسفعلي خان بدخشاني لور، دریمه د ملک لنډي خان منګل لور او څلرمه یې د تاجوخان ساکزي لور وه. څلور تنې یې منکوحه پرېښوولې چي په هغو کي یوه سرور سلطانه د امان الله خان مور. بله یې علیا جناب د سردار یوسف خان لور د محمدنادر خان خور او د شهزاده اسدالله جان مور، دریمه یې صاحب جمال خانم د محمد عثمان خان صافي لور د شهزاده عنایت الله خان مور او څلرمه یې علیا رتبه د امیر شېرعلیخان د زوی محمدابراهیم خان لور وه. (وګ : تاریخ سیاسی افغانستان، ۴۲۷مخ).

نوموړي د امیر د ملاتړ په خاطر یو سفر هم وکړ. دا مطلب مي وروسته د پولادا په کتاب (Reform & Rebellion in Afghanistan۱۹۱۹-۱۹۲۹) ولووست[۲]. په دغه کتاب (۳۸مخ) کي د میجر واک فرېزر د یوه محرمانه لیک په حواله، چي د هندوستان د سکرټري آف سټېټ په نامه یې کښلی و، د امان الله خان مور علیاحضرتي ته د (دلچسپه زړه وریاز) The interesting old eagle لقب ورکړی و[۳].

علیاحضرت ته په ۱۹۲۹ع کال د مي په میاشت کي له خپل زوی امان الله خان سره یو ځای بمبئي ته ولاړه او له هغه ځایه ایټالیې ته ورسېده (جون ۱۹۲۹غ). دا تر ۱۹۳۵ع کال پوري په اروپا کي پاته سوه او زیاتره به په روم کي د امان الله خان په کور کي اوسېدله خو کله کله به د سویټزرلینډ د منټرو (Montreux) ښار او برلین ته هم تلله. وروسته یې استانبول ته کډه وکړه او په ۱۹٦۵ع کال په دغه ښار کي مړه سوه[۴].

له سرورسلطاني ښځه پر امان الله خان سربېره ځلور لوڼي پاته سوې چي صفورا (قمرالبنات) یې د سپهسالارشاه محمودخان مېرمن، صفیه (ثمرسراج) یې د مارشال شاه ولیخان مېرمن، سایره بیګم (سراج البنات) یې د والي علي احمدخان مېرمن او رضیه جانه یې د سردار حسن جان مېرمن وه[۵].

- بي بي همدم : د امیر شېرعلیخان د زوی شهزاده عبدالله جان (ولیعهد) نامزده وه.
- خاورجانه
- زینب جانه

---

[۲] وګ: عمرجان صاحبزاده، د لیکونکي ناچاپ اثر.

[۳] میجر فرېزر هغه انګرېز افسر و، چي امان الله خان او د هغه دله یې په کښتۍ کي له بمبئي څخه تر اروپا پوري بدرګه کړه. دی د (Wak Fraser) په نامه باندي مشهور سوی و او (wak) د (William Archibald Kenneth) لنډ شکل و. (وګ: پولادا، ۳۸مخ).

[۴] ادمک، ۲۵۷مخ.

[۵] سردار حسن جان د امیر دوست محمد خان زوی و.



علیا حضرت سرور سلطانه



۱- سرور سلطانه (علیا حضرته)
۲- سایره بیگم (سراج البنات)
۳-صفیه سلطان (ثمر السراج)
۴- رضیه سلطان (نور السراج)
۵-صفورا سلطان (قمر البنات)

# علي احمدخان والی

علي احمد خان د لویناب خوشدل خان زوی، د لویناب شېردل خان لمسی، د میرداد خان کړوسی، د بازارخان کوسی او د یاسین خان کودی و. مور یې د امیر دوست محمد خان لور وه. علي احمد خان د ۱۸۸۳ع کال په شاوخوا کې زېږېدلی و. لودویک ادمک وایي چې د هند په مري (Murree) کې یې تعلیم کړی و. پښتو یې مورنۍ ژبه وه او په پارسي، انګرېزي او اردو ژبو ډېر ښه پوهېدی. کله چې علامه محمود طرزي د سراج الاخبار جریدې خپرول پیل کړل، علي احمدخان یې د سرنګران په توګه وټاکه. علي احمدخان له سردار عنایت الله خان سره هند ته د سفر ملګري کړې وه. په ۱۹۰۵ کال د ملکي شاغاسي په توګه وټاکل سو. په ۱۹۰۷ع کې یې له امیر حبیب الله خان سره د هند سفر وکړ او وایي چې په همدغه کال چې امیر هرات ته په دوره ولاړ، علي احمد خان یې ملګری و. په ۱۹۱۵ع کال ننګرهار ته ولېږل سو، چې شبقدر ته نژدې د مومندو په پاڅون کې د افغانانو د ګډون په باب څېړنه وکړي او هڅه وکړي چې په راتلونکي کې افغانان له هغوی سره یو ځای نه سي. ویل کېږي چې د ۱۹۱۹ع کال په فبروري کې په خپلو وظایفو کې د پاته راتلو له امله د امیر له خوا وترټل سو.

کله چې امیرامان الله خان د پلار تر وژل کېدو وروسته په کابل د پاچهۍ اعلان وکړ، علي احمدخان په جلال آباد کې سردار نصرالله خان ته چې هغه هم د سلطنت اعلان کړی و، خپل بیعت ورکړ او په هغه غونډه کي یې له ولولو ډکه وینا کړې وه چې د سردار نصرالله خان په ملاتړ په جلال آباد کې جوړه سوې وه. وایي چې امیر امان الله د دغې وینا له امله ورڅخه ډېر خوابدی و. کله چې سردار نصرالله خان د امیر امان الله خان په ګټه د خپل سلطنت تر اعلان تېر سو او امان الله خان ته یې بیعت ورکړ، علي احمدخان د امان الله خان د عسکرو له خوابندي سو خو د امان الله خان د مور

علیاحضرتي په کوښښ ډېر ژر له بنده خوشي سو او د دربار په اراکینو کي شامل سو.

د ۱۹۱۹ع کال په جون کي د هغه هیئت د مشر په توګه وټاکل سو، چي له انګلیسانو سره د خبرو له پاره جوړ سوی و.

د همدې کال په اګسټ کي د کورنیو چارو وزیر (ناظر ملکی) سو او په دغه وخت کي په کابل کي اوازه وه، چي علي احمدخان د سپټمبر په میاشت کي له کابله بخارا ته ولاړ چي د هغه ځای د امیر لور د امان الله خان له پاره وغواړي[1] خو د همدې کال په نومبر کي تش لاس راستون سو. کابل ته تر راتګ وروسته یې د امان الله له خور سره واده وکړ. تر دغي خپښي وروسته یې له امیر سره مناسبات خراب سول. امیر په کور کي نظر بند وساتئ او د دولت یوولس لکه روپۍ باقیداري، چي د علي احمدخان پر غاړه پاته وه، ځني وغوښتله او ویل کېدل چي علي احمدخان د اړیکو په دې خرابېدو تیا کي د جنرال غلام نبي خان لاس شامل ګاڼه او له جنرال سره یې مناسبات دومره وران سول، چي یو وخت خو یې په سم مجلس کي توري سره وکښلې.

علي احمدخان د ۱۹۲۳ع کال په پای کي له نظربندۍ څخه خوشي سو او په دابل کال (۱۹۲۴ع) د منګلو د بغاوت پر مهال جلال آباد ته د تنظیمیه رئیس په توګه واستول سو. ده هورې وکولای سول چي د مومندو او اپرېدیو یو لوی لښکر راغونډ کړي او د منګلو بغاوت په مات کړي. ده ته د دغي سوبي له امله د (تاج افغان) لقب ورکړه سو او کابل ته تر راستنېدو وروسته د کابل ولایت چاري هم ور وسپارل سوې.

والي علي احمدخان له امیر امان الله خان سره اروپا ته د هغه په تاریخي سفر کي ملګری و. له اروپا څخه تر راستنېدلو وروسته له کاره بیکاره سو او د ۱۹۲۸ع کال تر ډسمبر پوري یې کومه دنده پر غاړه نه درلوده. په دغه کال د شینوارو شورش پیښ سو او امیر دی د یوه لښکر په مشرۍ هغه لور ته واستاوه. خو امیر ته داسي اطلاعات ورسېدل چي والي علي احمدخان د ننګرهار له قومي مشرانو سره د خپل ځان د پاچهۍ په باب رغېدلی و. والي علي احمدخان که څه هم امان الله ته ډاډ ورکړ، چي دا کار

[1] دا خبره لودویک ادمک کړې ده، ۱۱۵مخ.

يې د يوې جنګي خدعې (ruse) په توګه کړي و، خو بيا هم د امير په زړه کي ناولی لاس وهل کېدی او پر والي علي احمدخان باندې نور باور له لاسه ورکړی و.

په ۱۹۲۹ع (جنوري) کي چي د سقاو زوی، حبيب الله کلکاني کابل ونيو، والي علي احمد خان د خوګيانيو او غلجيو قومونه سره راغونډ کړل او پر کابل يې مارش وکړ، خو په جګړلک کي يې د سقوي لښکرو له لاسه ماته وخوړه او د هندوستان له لاري يې ځان کندهار ته ورساوه. هورې يې د امان الله خان سره يو ځای د کابل د نيولو په پلان کي عملي برخه واخيستله خو له هغه لښکر سره ملګری نه سو، چي د کابل د نيولو په نيت له کندهاره راووت. وايي چي زوی يې نوراحمدجان په دغه لښکرکښي کي کلات ته نږدې شهيد سو. موږ ته معلومه ده، چي دې لښکر تر غزني پوري بريالی پرمختګ وکړ، خو هورې د ځينو استعماري شبکو د مرموزو فعاليتو له امله امير امان الله خان د ملت تر منځ د کورنۍ جګړې د اور بلېدو په بيه د خپلي پاچهۍ دوام ته حاضر نه سو او له هغې ځخه لاس پر سر سو او له هيواده ووت (۴ جوزا ۱۳۰۸ ش = جولای ۱۹۲۹ع). والي علي احمد خان په کندهار کي د کابل د نيولو له پاره هڅي وکړې خو دا وار يوازي پاته سو او د سقوي سپاهيانو لاس ته ورغی. سمدلاسه يې له مولوي عبدالواسع کاکړ او ملا عبدالاحد پوپلزي سره کابل ته واستاوه. هورې د ۱۹۲۹ع کال په جولای کي په توپ کي والوزول سو[۲].

---

[۲] دکتور خليل الله ودادبارش د خپل کتاب (اميرحبيب الله کلکاني، مردی در حريق تاريخ) په ۱۸۲ – ۱۸۳مخونو کي د فيض محمد (کاتب؟) په حواله ليکي چي د سقوي لښکرو سپه سالار پردل چي پر کندهار باندي بريد کاوه، د ښار د تسليمۍ په کار کی ورسره احمد علي خان لودين مرسته کړې وه. ښاغلي کانديد اکادميسن سيستاني هم د دکتور خليل الله ودادبارش دغه خبره پخپل کتاب (علامه محمود طرزی، شاه امان الله و روحانيت متنفذ، ص ۵۷) کي نقل کړې ده. داخبره ما ته د تأمل وړ ښکاري. ځکه اروانښاد احمدعليخان لودين (۱۹۳۸ع مړ) به د اماني دولت په باب ځيني اعتراضونه درلودل، خو دی د نادرخان د ټيم سړی و، او طبيعي وه چي له سقوي واکدارانو سره يې جوړه نه وه. ده د امان الله خان په پاچهي کي د جلال آباد او کوهستان حکومتونه کړي وه او په چين او برلين کي يې د افغانستان د نماينده په توګه کار کړی و. پلار او ←

د اعدام پر وخت باندي د والي علي احمدخان د زړه ورتيا او ژمنتيا بيانونه ټولو مؤرخينو کړي دي. لودويک ادمک او نور مؤرخين وايي چي ده د اعدام پر وخت د هغه توپ خوله مچ کړه[۳] چي څو شيبې وروسته يې ګولۍ د ده بدن ټوټه ټوټه کړ. اروابناد مير غلام محمد غبار ليکي : کله چې والي په توپ کي تر الوزولو وړاندي د کابل په بازارو کي تېراوه، په خورا وقار او متانت يې درانه ګامونه اخيستل.

ايراني مؤرخ مهدي فرخ ليکي :

ترجمه : "... مرحوم علي احمدخان په شخصي توګه ډېر زړه ور او مېړنی سړی و. پر دوستۍ باندي خورا ټينګ ولاړ او په لاس کي ډېر خلاص (بذال) و، د ډېر لوړ نظر څښتن و ...کله چي يې په توپ کي الوزاوه، وې ويل: ما هيڅکله دښمن ته شانه ده ګرځولې، توپ ته مي مخامخ وتړئ. د سقاو ميرغضبانو همداسي وکړل او يو ډېر زړه ور او شرافتمند سړی يې د توپ په ګولۍ نوکي نوکي کړ ... د انصاف له مخي په کار وه چي افغانانو د دغه هيوادپال شخصيت د وژلو ورځ عمومي ماتم اعلام کړی وای ...[۴]". دا وې د هغه مؤرخ خبري چي ټول کتاب يې افغانانو ته په بدو يلو ډک دئ.

ښاغلی کانديد اکاډميسن سيستاني ليکي : ترجمه : "... والي علي احمدخان ښکلی، په تن پياوړی، جګ او دنګ سړی و، پراخ تندی او چنګک اوږده بريتونه يې وه، پراخ ټټر او غښتلي موټي يې وې. دې ښکلاوو ده ته له برمه ډکه څېره بخښلې وه او ليدونکی يې تر تأثير لاندي راتلی[۵]".

د نادرخان په هغه شاهي فرمان کي چي د محمدولي خان او

---

⟵ نيکه يې (عبدالواحد خان لودين او محمدرفيق خان لودين) هم د خپل وخت مشهور خلک وه. احمد علي خان لودين د نادرخان او ظاهرخان په پاچهيو کي هم پر لوړو حکومتي او نظامي چوکيو باندي کار کړی و. څرګنده ده چي د سقوي دولت پلويانو ته په نادرخاني دولت کي د کار کولو ځای نه و. ما ته د خپلو مشرانو له خولې دومره معلومه ده، چي سقوي لښکرو ته د کندهار ښار د دروازې په خلاصولو کي د توخو يو مشهوري کورنۍ همکاري کړې وه.

[۳] ادمک، ۱۱۵مخ.

[۴] مهدی فرخ، تاريخ سياسی افغانستان، ۵۰۴مخ، دوهم چاپ ۱۳۷۱.

[۵] سيستاني، علامه محمود طرزی، شاه امان الله و روحانيت متنفذ، ۵۸ مخ.

محمود سامي د محاکمې په باب په ۲۵ دلو ۱۳۰۸ش نېټه صادر سوی و، ځر ګنده سوې ده، چي ګويا کلکاني حبيب الله پخپل ژوندکي له والي علي احمد خان څخه خوښي او رضائيت ښوولی و[٦]. دا خبره ما (هوتک) ته د منلو وړ نه ايسي او د خانداني دښمنيو اغېزه پکښې شامله ګڼم.

---

[٦] وګ : محاکمۀ خاينين ملی، ص ۱۹، چاپ ۱۳۸۳ش. دغه اثر واردواره په ۱۳۰۹ ش کال په کابل کي چاپ سوی دئ.



والي علي احمد خان

# شاغاسي عطاء الله خان

شاغاسي عطاءالله خان د میردادخان بارکزي زوی او د لویناب شېر دل خان ورور و. دی د امیر شېرعلیخان د مشر زوی شهزاده محمدیعقوب خان (وروسته امیر محمدیعقوب خان) له نږدې کسانو څخه و. کله چې شهزاده محمدیعقوب خان د پلار له خوا د هرات حکومت چلاوه، شاغاسي عطاءالله خان ورسره و. وایي چې د پلار په مقابل کې د شهزاده محمدیعقوب خان د پارولو په مسئله کې نوموړي شاغاسي لوی لاس درلود. شهزاده محمدیعقوب خان له خپل پلار سره د شهزاده عبدالله جان د ولیعهدۍ پر موضوع مخالف سو. د پلار په مقابل کې ودرېدی او تر څه مودې مخالفت وروسته یې بیرته خپل پلار امیر- شېرعلیخان ته دتسلیمۍ غاړه کښېښووله. امیر په دې شرط وباخښه چې شاغاسي عطاءالله خان، سردار شاه پسندخان او شاغاسي عطاء محمدخان به امیر ته لاس تړلي په لاس ورکوي. محمدیعقوب خان له پلار سره دا شرط ومانه او هغه هم بیرته د هرات حکومت ورسپاره. یعقوب خان چې کله هرات ته ورسېد، له وعدې سره سم یې له شاغاسي عطاء الله خان پرته نور ټول متهمین کابل ته ولېږل[1]. د شاغاسي عطاءالله خان زامن او لمسیان زیاتره پر لوړو دولتي چوکیو ناېبت ول چې پر خپل ځای به پر ورغېږو.

وایي چې د امیر حبیب الله خان په وخت کې چې منګلو او سلیمان خېلو بغاوت وکړ، علت یې دا و، چې امیر د خوست حکومت د شاغاسي عطاء الله خان زوی محمداکبر خان ته ورکړی و. د ده له اداري څخه عام اولس ډېر ناراضه و. څکه نو عمومي پاڅون وسو، چې امیر یې ارامولو ته محمدنادرخان ولېږی. محمدنادر خان پاڅون خاموشه کړ او په عوض کې یې د (سپهسالار) رتبه وګټله[2].

---

[1] تاریخ سیاسی افغانستان، ۲۹۱مخ.

[2] تاریخ سیاسی افغانستان ۴۲۴مخ.

# شاغاسي محمدسرور خان

## (مشهور په بابا)

شاغاسي محمدسرور خان (سردار اعلی) د شاغاسي عطاء الله خان زوی[1] د میرداد خان لمسی و . د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې د دولتي فابریکو د رئیس په توګه کار کاوه او نظامي رتبه یې سرهنګي وه. څه موده د مزارشریف او میمنې والي و، چې په هغه وخت کې یې دا سیمي ترکستان بللې. وروسته د کندهار د والي په توګه مقرر سو. په ۱۹۲٦ع کال یې د سردار اعلی نښان ورکاته. په ۱۹۲۸ع کې د بدخشان حاکم او ورپسې په ۱۹۳۰ع کال د کابل د والي په توګه وټاکل سو. په ۱۹۳۱ع کال یې کار پرېښوو او د حج فریضه یې ادا کړه. هیواد ته تر راتګ وروسته څو کاله د اعیانو د مجلس (د مشرانو جرګې) غړی و. په ۱۹۵۰ع کال وفات سو.

---

[1] مهدی فرخ په (کرسی نشینان کابل، ۱٦۲مخ کي) محمدسرورخان د محمدصادق بارکزي زوی بللی دئ. ما (هوتک) په هغه شجره کي چي د شاغاسي شېردل خان د کورنۍ له غړو څخه تر لاسه کړې ده، د میردادخان په زامنو کي د محمدصادق نوم و نه مونډ.



شاغاسي محمد سرور خان (بابا)
په عکس کي امان الله خان هم ليدل کېږي!

# محمدابراهیم خان

محمدابراهیم خان د محمدسرورخان نائب الحکومه زوی و. دی د سردار نصرالله خان نائب السلطنه فراشباشي[۱] و. د امیر حبیب الله له خوا ورته د (سواران خاصه) مشرتوب هم ورکول سوی و. د امیر امان الله په پاچهۍ کي د عدلیې وزیر سو. څه موده ترکستان ته هم د خدمت له پاره لېږل سوی و. وروستۍ وظیفه یې په هرات کي د والي په توګه وه.

کله چي امیر امان الله خان په کندهارکي د بیا پاچهۍ له پاره په فعالیتو بوخت و، په هرات کي د پوځیانو له خوا اړودوړ پېښ سو او په دې اله ګوله کي محمدابراهیم خان نائب الحکومه او نظامي قوماندان عبدالرحمن خان ووژل سول[۲].

---

[۱] فراشباشي د دربار د ټولو مفروشاتو (غالیو، خېمو او د فرش د نور اسباب) مشر ته ویل کېدی.

[۲] د هرات نقاد شاعر حاجي محمداسماعیل سیاه د دې دوو تنو هجویه مرثیې ویلي او د دوی د وخت حالات او اجراآت یې غندلي دي. وګ: شاعرآزاد، ۱۸۲–۱۸۳ مخونه.

# وزير عبدالعزيزخان

عبدالعزيز خان د معاذالله خان زوی د شاغاسي عطاءالله خان لمسی او د میردادخان بارکزي کړوسی و. د امیر امان الله خان د پاچهۍ په وخت کي د دربار له مهمو کسانو څخه ګڼل کېدی د امیر مور علیا حضرتي ورته په درنه ستر ګه کتله.

کله چي امان الله خان د اروپا په سفر تلی، د عبدالعزیزخان پر غاړه یې، چي په دغه وخت کي یې د داخله وزیر په توګه وظیفه درلوده، د حربیې وزارت د کفالت چاري هم واچولې. عبدالعزیز خان د (دیوان حرب) د هغه مجلس مهم غړی و، چي په پکتیا کي د اغتشاش د لمسوونکو د محاکمې له پاره تشکیل سوی و. اروانښاد غبار د دې ډلي د فعالیت او هغوی ته د سزا ورکولو جریان په تفصیل سره بیان کړی دئ[1].

عبدالعزیزخان په ۱۹۲۷ع کال د حربیه وزیرپه توګه وټاکل سو او د سقوي اغتشاش په جریان کي چي امان الله خان کندهار ته ولاړ، دی هم ورسره و. امیر چي له کندهاري لښکر سره د کابل د بیا نیولو په نیت مخ پر پایتخت رهي سو، عبدالعزیزخان یې د عبدالکریم خان[2] پر ځای د کندهار د والي په توګه وټاکه. ده کندهار ته د پردل خان په مشرۍ د سقوي لښکرو په مقابل کي لکه څنګه چي لازمه وه، مقاومت ونه کړ او د بلوچستان له لاري برتانوي هند ته وتښتېد. هورې له امان الله خان سره یو ځای سو. کله چي امیر ایټالیا ته وخوځېد، عبدالعزیزخان په هند کي پاته سو او څه موده وروسته بیر ته خپل هیواد ته راستون سو. دلته یې د ۱۹۵۵ع کال په لویه جرګه کي برخه واخیستله[3]. وزیر عبدالعزیزخان په ۱۹٦۰ع کال مړ سو.

---

[1] وګ : افغانستان درمسیر تاریخ، ۸۱۷ مخ، اول چاپ.

[2] عبدالکریم خان د قاضی القضات سعدالدین خان بارکزي زوی. د کندهار د علومیانو کورنۍ د دوی اولاده ده.

[3] دا لویه جرګه د پښتونستان پر مسئله باندي راغوښتل سوې وه او د جرګې مشرتوب د وزیر محمدګل خان مومند پر غاړه و.



وزیر عبدالعزیز خان

## عبدالحکیم خان

د معاذالله خان زوی او د وزیر عبدالعزیز خان ورور و. د امان الله خان په وخت کي د جنوبي حاکم اعلیٰ و.

# شاغاسي محمود خان یاور

شاغاسي محمودخان یاور د شاغاسي محمدشاه خان زوی د شاغاسي امیرمحمدخان لمسی او د میرداد خان بارکزي کړوسی و. د امیر امان الله خان او د شاغاسي محمودیاور میندي یو له بله سره خویندي کېدې. ده د امیر امان الله خان د پاچهۍ په سر کي د امیر د شاغاشي په توګه کار کاوه او وروسته د امیر د حضور یاور مقرر سو، ځکه نو د یاور کلمه د ده له نامه سره همېشنۍ مل پاته سوه. امیر امان الله خان چي اروپا ته په رسمي سفر ولاړ، محمود یاور یې د کابل حکومت د کفیل په توګه وټاکه[1] او کله چي امیر امان الله خان د اروپا له سفر څخه هیواد ته راستون سو (جولای ۱۹۲۸ع) او د اروپایي مدنیت تر اغېزې لاندي یې په هیواد کي د نورو مدني کارو تر څنګ عمراني چارو ته هم زیاته پاملرنه وکړه او د کابل ښار په جنوب کي یې د جرمني سرانجنیر هارتل (Hartle) په لارښوونه د دارالامان ماڼۍ بنسټ کېښېښود، نو یې د دغي ماڼۍ د ودانولو چارو سرپرستي د شاغاسي محمودخان یاور پر غاړه واچوله. پر ده باندي د همدې وظیفې د سر ته رسولو په دوران کي ځیني اعتراضونه هم وسول خو څرنګه چي د امیر بشپړ ملاتړ ورسره و، چا پر دغو اعتراضو باندي غوږ ونه نیو.

محمود یاور په سقوي دوره کي بندي سو (۱۹۲۹ع)، خو وایي ډېر ژر بیرته خوشي او پر کار هم ودرېد. اروابناد غبار لیکي، چي د ۱۳۴۷هـ ق کال د شعبان پر شپږمه = ۱۹جنوري ۱۹۲۹ع په کابل کي د امان الله د تکفیر او خلع په باب یوه اعلامیه خپره سوه، چي د اماني حکومت د یو شمېر لوړ رتبه مامورینو له خوا لاسلیک سوه. د لاسلیک کوونکو په ډله کي د محمود خان یاور نوم هم راغلی دئ[2]. محمودخان یاور د نادرخان په پاچهي کي بیا بندي سو او کله چي محمدظاهرشاه پر تخت کښېنوست، له بنده آزاد سو، خو په کابل کي د مرګ تر وخته پوري نظربند پاته سو تر څو په ۱۹۷۱ع کال مړ سو.

---

[1] کرسي نشینان کابل، ۹۵مخ، حاشیه.

[2] افغانستان در مسیر تاریخ، ۸۲۷ مخ.

# محمدافضل خان شېردل

محمدافضل شېردل (د کندهار ښاروال) د محمداکرم خان زوی او د شاغاسي لويناب شېردل خان لمسی و، چې د ۱۳۳۱ هـ ق کال د ذوالحجې پر اتمه زېږېدلی دئ. حکومتي کارونه يې په کابل کې پيل کړي وه او کله چې محمديونس خان د کندهار د نائب الحکومه په توګه وټاکل سو (۱۹۴۶ع) محمدافضل خان يې د بلديې د مرستيال په حيث مقرر کړ. د کندهار د سينما ودانۍ د ده د مرستيالۍ د وخت نښانه ده. نوموړي وروسته د کندهار د تعميراتو د لوی مدير په توګه کار کړی دئ او کله چې عبدالغني خان ګرديزی د کندهار والي سو (۱۹۵۰ع)، محمدافضل خان يې د ښاروال په توګه وټاکه. ده څه موده د مرستون د رئيس په توګه هم کار کړی دئ. د کندهار د باغ پل نوې ودانۍ او هوټل د ده په زيار ودان سول. نوموړی د ثور په کودتاه کې بندي سو او تر خوشي کېدو وروسته د ۱۹۸۸ع. کال د اکتوبر پر څورلسمه وفات او د حضرت جابر انصار ﷺ په هديره کې ښخ سو.

د مرحوم محمدافضل خان شېردل زوی محمديوسف خان شېردل په ټورنټو کې اوسي او زما سره يې د کتاب د دغې برخې په معلوماتو کې ښه پوره مرسته کړې ده، چې د زياتي مننې مستحق دئ.



له کیڼي خوا:

۱- محمد یوسف شېردل ۲- حاجي عبدالصمد ۳- محمد افضل شېردل ۴- محمد عارف.




* شجره یې په راتلونکي مخ کي وګورئ.
** مشهور په ابو لالا، د امیر شېرعلیخان په وخت کي د میمنې حاکم.
*** د امیر حبیب الله خان په وخت کي د قطغن نائب الحکومه و.




---

* وګورئ د ۲۴۲ مخ شجره.
** وګوري د۲۴۶ مخ شجره.
*** وګورئ د ۲۴۳ مخ شجره.




---

(۱) مشهور په (بابا).
(۲) د قطغن نائب الحکومه و.
(۳) د ده په باب په متن کي (۲۳۳مخ) وګورئ
(۴) د امان الله خان په وخت کي د جنوبي حاکم و.
(۵) د امان الله خان په وخت کي د عدلیې وزیر و.

# شاغاسي شېردل خان

- خوشدل خان(۱) (لویناب)
  - علي احمد خان والي
  - زرین جان(۶)
- محمد اکرم خان
- د فراه حاکم اعلی محمد علم(۳)
- محمد عمر خان(۴)
  - محمد اسلم خان
  - محمد کریم خان
  - محمد ایوب خان
  - زبیده
  - رابعه(۷)
- محمد یوسف خان(۵)
- سکندر خان
  - فیض محمد خان غونډمشر
  - صالح محمد خان ناظم
  - نظر محمد خان سکندر(۹)
  - نېک محمد خان(۸)
  - ۴ لوڼي
- محمد علي خان (د کندهار والي)
  - محمد عثمان خان
  - امیر بېګم
  - محمد اسحق
- سلطان علي خان
  - نور علي
  - څلور لوڼي
- دري لوڼي(۲)

---

(۱) مور یې (سایره) نومیده، لقب یې (بیو) وا او د امیر دوست محمد خان لور وه.

(۲) د شېردل خان د لوڼو په باب په متن کي مفصل معلومات ولولئ.

(۳) د لوګر حاکم و. ما ته د لوګر پلځعلمېد ده له نامه سره ترلې ښکاري؟ خو دا هسي یو ګومان دئ. له محمد علم خان څخه د (آمنه) او (زلیخا) په نومو لوڼي پاته سوي دي.

(۴) د علیاحضرتي د حضور کرنیل و.

(۵) د ۱۲۹۷ هـ ق کال د شعبان پر ۲۷ مه د کندهار ښار له نورزو شاه برج سره د انګرېزانو په لاس شهید سو.

(۶) لقب یې (بیوګل) وا او د ظاهرشاه د ملکې (حمیرا) مور وه. د حمیرا پلار سردار احمدشاه خان و.

(۷) د وزیر عبدالعزیز خان مېرمن وه

(۸) د امان الله خان په وخت کي فرقه مشر و.

(۹) د محمدداود خان په جمهوریت کي د روغتیا وزیر و.




[۱] وزیر بېګم (شاه بیو) د سردار تاج محمد خان لور.
[۲] سایره بېګم (سراج البنات) د امیر حبیب الله خان لور.
[۳] د ظاهر شاه د وخت دپلان د وزیر عبدالحی خان مېرمن وه.
[۴] د ظاهر شاه د دربار معین و. په ویرجینیا (امریکا) کي مړ او هوري ښخ سو.
[۵] له بچهٔ سقاو سره د جګړې پر وخت په کلات کي شهید سو.




(۱) په ۱۳۰۴ هـ ش کال په کندهار کي وفات او د صوفي صاحب په زیارت کي ښخ دئ.

(۲) د ۱۳۳۲ ش کال په حمل کي مړ او د کابل د شاه شهید په هدیره کي ښخ دئ.

(۳) په پېښور کي مړ او هورې ښخ دئ.

(۴) په ۱۹۸۸ع کال د اکتوبر پر ۱۴مه په کابل کي مړ او د حضرت جابر انصار ﷺ د زیارت څنګ ته ښخ دئ.

(۵) وګ: د همدې متن (۲۳۸) مخ.

(۶) د ۱۳۵۸ ش کال د سنبلې پر اتمه په کندهار کي مړ او د صوفي صاحب په زیارت کي ښخ دئ.

(۷) د ۱۹۹۶ع کال د مې پر ۳۱ په ویرجینیا کي مړ او هورې ښخ دئ.

## شاغاسي امیر محمد خان
### (د میرداد خان زوی)




---

[1] شجره یې په راتلونکي مخ کې وګورئ.

[2] شجره یې په راتلونکي مخ کې وګورئ.




---

[1] (۱) جمیله د معین محمد افضل خان ناصري مېرمن.
(۲) عالیه د معین ناصري د زوی اسلم جان مېرمن.
(۳) صالحه
(۴) شریفه
(۵) اتم ګل

# د سړیو نومونه

# د ځايو نومونه

